جوزوف ستالين

# مارکسیزم

# او د ژبپوهنې مسئلې

ژباړه:ویاړ

که څه هم د ژبپوهنې اړوند مسائل پېچلې او اړینې اکاډمیکي او تخصصي پوهې ته اړتیا لري، خو ما تر خپله وسه هڅه کړې چې دا ژباړه ساده او د پوهېدو وړ وي.

هیله مندیم دا ژباړه د مارکسیزم او د ژبپوهنې د مسئلو په اړه د پوهې په برخه کې ګټوره تمامه شي.

# لړلیک

## مارکسیزم او د ژبپوهنې مسئلې[1]

د ځوانو ملګرو یوې ډلې له ما غوښتي چې په مطبوعاتو کې د ژبپوهنې د موضوعاتو، په ځانګړي توګه د ژبپوهنې په اړه د مارکسیزم د لیددود په اړه خپل نظر ووایم.زه ژبپوه نه یم او په هیڅ ډول نشم کولای د دې ملګرو غوښتنه، څرنګه چې اړینه ده پوره کړم.خو له مارکسیزم سره د ژبپوهنې او د نورو ټولنیزو علومو په برخه کې آشنایي لرم، نو د همدې لپاره مې منلې چې د ملګرو ځینو پوښتنو ته ځوابونه ووایم.

**پوښتنه:**آیا دا سمه ده چې ژبه پر بېخبنا ودرېدلې مخبنا ده؟

**ځواب:**نه، دا سمه نه ده.

بېخبنا د ټولنې د تکامل په یوه ټاکلي پېر کې د هغې اقتصادي جوړښت دی. مخبنا د ټولنې سیاسي، حقوقي، دیني، هنري او فلسفي لیددود رانغاړي او سیاسي، حقوقي او نور سازمانونه د همدې لیددود سره تړاو لري.هره بېخبنا خپله اړونده مخبنا لري.د فئوډالي سیستم بېخبنا، خپله مخبنا لري؛ خپل سیاسي، حقوقي او دا ډول نور باورونه او تر څنګ یې خپل اړونده سازمانونه لري.د پانګوالۍ نظام او

---

[1] د ستالین د «مارکسیزم او د ژبپوهنې مسئلې» تر عنوان لاندې مقاله د ۱۹۵۰ کال د جون په ۲۰ مه په پراودا کې خپره شوه. مخکې له دې په پراودا کې د شوروي د ژبپوهنې د مسئلو په اړه بحث پیل شوی و. دا مقاله د ملګري ستالین لخوا د شوروي د زده کړیالانو یوې ډلې په ځواب کې لیکل شوې، چې د بحث په اړه یې له هغه پوښتنې کړې وې. په پراودا کې لادمخه دا مقالې خپرې شوې وې:«د ماتریالیستی ژبپوهنې بهیر»(د بولواخوسکي د علومو اکراییني اکاډیمي د غړو لیکنه)، «د روسي د ژبپوهنې تاریخ او د مار تئوري»(د نیکیفوروف لیکنه)«د ژبې د طبقاتي ځانګړتیا مسئلې»(د کودریتستف لیکنه)او نورې.

همدا ډول د سوسیالیستي نظام بېخبناوې هم خپلې مخبناوې لري.د بېخبنا د بدلون یا نابودۍ سره اړونده مخبنا یې هم بدلیږي یا نابودیږي، څرنگه چې د نوې بېخبنا له پیدا کیدو سره نوې مخبنا راپیدا کیږي.

د پورتنیو توضیحاتو په رڼا کې ویلی شوو چې ژبه له مخبنا سره له ریښې توپیر لري.د بېلگې په توگه د روسیې ټولنه او روسي ژبه په پام کې ونیسئ.په تېرو دېرشو کلونو کې د روسیې د پانگوال سیستم بېخبنا ړنگه او نوې سوسیالیستي بېخبنا جوړه شوه.له دې سره سم د پانگوالۍ نظام پر بېخبنا ولاړه مخبنا نابوده او نوې مخبنا رامنځته شوه، چې له سوسیالیستي نظام سره متناسبه وه.له دې بدلون سره پخوانیو سیاسي، حقوقي او نورو بنسټونو خپل ځایونه نویو سوسیالیستي بنسټونو ته ورکړل، خو له دې ټولو سره، روسي ژبه اساساً همغسې پاتې شوه څنگه چې د اکتبر انقلاب دمخه وه.

آیا روسي ژبه په دې موده کې بدله شوې؟هو، تر یوې اندازې پورې د روسي ژبې قاموس بدل‌شوی، یو شمېر نوي لغاتونه او اصطلاحات چې د نوي سوسیالیستي تولید، د نوي دولت، د نوي سوسیالیستي کلتور، د نویو ټولنیزو اړیکو او اخلاقیاتو له رامنځته کیدو او همدا ډول د تکنالوجۍ او علومو له تکامل سره یې تړاو درلود، په قاموس کې زیاتې شوې؛ د ځینو لغتونو او اصطلاحاتو ماناگانې بدلې شوې، نوي مفهمونه یې پیدا کړل او یو شمېر زړې کلیمې له قاموس څخه حذف شوې.خو د پانگوالۍ د بېخبنا تر ړنگېدو وروسته د روسي ژبې د کلیمو اصلي زېرمه او گرامري سیستم، چې د ژبې اساس جوړوي، په اصلي بڼه پاتې او له مهم بدلون پرته د اوسنۍ روسي ژبې اساسي بنسټ جوړوي.د یادونې وړ ده چې په دې موده کې د کلیمو نوې اصلي زېرمه او نوې گرامري سیستم نه دې رامینځته شوی.

دا سمه ده چې مخبنا د بېخبنا محصول دی، خو دا قطعاً په دې مانا نه ده چې مخبنا دې یوازې د خپلې بېخبنا، د طبقاتو د برخلیک او د سیستم د ځانګړتیاوو منفعله، شنډه او بې‌پره منعکس کوونکی وي.برخلاف د دې، مخبنا له پیدایښت سره سم د یوه اغېزناک ځواک په ډول له بېخبنا سره په فعاله توګه مرسته کوي چې خپله بنه ومومي او پیاوړې شي. مخبنا له نوي سیستم سره کمک کوي چې زړه بېخبنا او زاړه طبقات له مینځه ویسي.

له دې پرته بله لاره نشته.مخبنا د بېخبنا په وسیله د دې لپاره رامینځته کیږي چې بېخبنا ته خدمت وکړي، ورسره په فعاله توګه مرسته وکړي چې خپله بڼه پیدا او پیاوړې شي او د مړیژنې بېخبنا او د هغې اړوندې زړې مخبنا د نابودۍ لپاره په فعاله ډول وجنګیږي.که مخبنا له دې کمکي رول څخه ډډه وکړي او د خپلې بېخبنا د فعال مدافع پرځای شنډ دریځ ونیسي او د ټولو طبقاتو په وړاندې یو شان چلند ته مخه کړي، د مخبنا په توګه به خپله ځانګړنه له لاسه ورکړي او نوره به مخبنا ونه ګڼل شي.

ژبه د همدې لپاره له مخبنا سره د بنسټه توپیر لري. ژبه په یوې خاصې ټولنه کې د یوې نوې یا زړې بېخبنا زېږنده نه ده. ژبه د پېړۍ پېړۍ تاریخي بهیرونو او په هغه کې د شته بېخبناوو د تاریخ محصوله ده. ژبه یوازې د یوې طبقې لخوا جوړه شوی نه ده، بلکې د ټولنې لخوا، د ټولنیزو طبقاتو لخوا او د سلګونو نسلونو د هاند او زیار پایله ده.ژبه یوازې د یوې ځانګړې طبقې د اړتیاوو د پوره کولو لپاره نه ده رامینځته شوی، بلکې د دې لپاره رامینځته شوی چې د ګردې ټولنې او د ټولو ټولنیزو طبقاتو اړتیاوې پوره کړي.د همدې لپاره ژبه د یوې ټولنې لپاره، د ټولنې غړو لپاره او د ټولو خلکو لپاره د مشترکې ژبې په توګه رامینځته شوې ده.سربېره په دې، د خلکو تر مینځ د اړیکو د وسیلې په توګه د ژبې دنده، یوې طبقې ته خدمت او د نورو طبقاتو

ځېل نه، بلکې ټولنې او ټولنیزو طبقاتو ته په مساوي ډول خدمت دی. دا ښکاره کوي، چې ژبه زاړه او مړیژن سیستم ته، نوي او غوړېدونکي سیستم ته؛ زړې بېخبنا او نوې بېخبنا ته او زبېښناکگرو او زبېښناک کېدونکو ته په مساوي ډول خدمت کوي.

ښکاره ده چې روسي ژبه د اکتبر انقلاب دمخه د روسیې پانګوالۍ او همدا ډول د بورژوايي فرهنګ په چوپړ کې وه، څرنګه چې نن د روسیې د سوسیالیستي ټولنې د نظام او کلتور په خدمت کې ده.ورته خبره د شوروي اتحاد د نورو ژبو لکه اوکرایيني، بلاروسي، ازبکي، کازاخي، ګرجي، ارمني، استونیايي، لیتویني، لیتوانیايي، مالداوي، تاتاري، آذري، باشکیراني، ترکمني او نورو په اړه هم سمه ده. دې ژبو د یادو ملتونو پانګوال زاړه نظام ته خدمت کاوه، څرنګه چې اوس نوي سوسیالیستي سیستم ته خدمت کوي.همدا د ژبې دنده ده.

ژبه د همدې لپاره رامینځته شوی او شتون لري چې د ټولنې په چوپړ کې وي، د خلکو تر مینځ د اړیکو د وسیلې په توګه عمل وکړي، ټولنې ته عامه وي او د واحدې ژبې په توګه ټولو ته پرته له دې چې طبقاتي وضعیت یې په پام کې ونیسي په مساوي ډول خدمت وکړي.که چیرې یوه ژبه د خلکو لپاره د عامتیا ځانګړنه له لاسه ورکړي او د یوې ټولنیزې ډلې په ځېلو سره د بلې ټولنیزې ډلې ملاتړ غوره وګڼي، خېل اهمیت له لاسه ورکوي او نوره د اړیکو د وسیلې په توګه د خلکو تر مینځ نه کارول کیږي.دا ډول ژبه د ځینو ټولنیزو ډلو تر مینځ د مخصوصو اصطلاحاتو بڼه مومي، چې برخلیک یې تري تم کېدل او نابودېدل دي.

که ژبه له یوې خوا له بېخه له مخبنا سره توپیر لري، له بلې خوا د تولیدي وسایلو او ماشینونو په څېر خپل نقش لوبوي.څنګه چې تولیدي وسایل او ماشینونه پانګه

وال سیستم او سوسیالیستي سسیتم ته یو شان خدمت کوي، ژبه کټ مټ دغه شان خدمت کوي.

ښایي زیاته کړم چې مخبنا د یو ټاکلي تاریخي پېر او په دغه تاریخي پېر کې د ټاکلي فعالې اقتصادي بېخبنا محصوله ده.د همدې لپاره د مخبنا عمر لنډ او موجودیت یې د بېخبنا له شتون سره تړاو لري.د بېخبنا له نابودۍ او پوپنا کېدو سره د هغه اړونده مخبنا هم محوه او له مینځه ځي. خو د مخبنا په خلاف، ژبه د یو شمېر پرله پسې تاریخي پېرونو محصوله ده چې په دې بهیر کې یې خپله بڼه موندلې، بډایه شوې، پرمختګ یې کړی او له روانتیا برخمنه شوې ده. د همدې لپاره ژبه د هر ډول بېخبنا او مخبنا په پرتله له اندازې زیات عمر کوي.د تاریخ په اوږدو کې د یوې بېخبنا او هغې پورې د اړوندې مخبنا راپیداکېدل او پوپنا کیدل څه، چې ان د څو بیخبناوو او اړوندو مخبناوو پیدایښت او تري تم کیدل هم لامل شوي نه دي چې یوه ټاکلې ژبه دې له مینځه لاړه شي. د هغه ګرامري جوړښت محوه شي او په ځای یې یوه نوې ژبه د کلیمو له نوې زېرمې او نوي ګرامري سیستم سره رامینځته شي.

د پوشکین له مړینې څه باندې سل کاله تېرېږي. په دې موده کې دوه نظامونه، فئوډالي او پانګوالي په روسیې کې نابود شوي او سوسیالیستي نظام د درېیم نظام په توګه رامینځته شوی.دوه بېخبناوې له خپلو مخبناوې سره پوپنا شوي او د سوسیالیزم نوې بېخبنا له خپلې اړوندې مخبنا سره رامینځته شوې ده.که په دې موده کې روسي ژبه د بېلګې په توګه وګورو، کوم بنسټیز بدلون په کې نه دی راغلی. د اوسنۍ عصري روسي ژبې جوړښت د پوشکین له ژبې سره ډېر کم توپیر لري.

نو بیا پوښتنه دا ده چې په دومره موده کې په روسي ژبه کې څه بدلون راغلی؟ په دې موده کې د روسي ژبې د لغتونو قاموس بډایه شوی، زیات شمېر زاړه لغتونه له قاموس څخه ایستل شوي، د یو شمېر زیاتو کلیمو ماناګانې بدلې شوي او د ژبې ګرامري جوړښت پیاوړی شوی دی.خو په دې پوهېږو چې د پوشکین د ژبې جوړښت،ګرامري سیستم او د کلیمو اصلي زېرمې لا د عصري روسي ژبې بنسټ جوړوي.

رښتیا څه اړتیا ده چې د هر انقلاب وروسته د شته ژبې جوړښت، ګرامري نظم او د کلیمو زېرمه نابوده او د هغه پر ځای نوي څه وکارول شي؛ هغه څه چې له مخبنا سره کیږي؟څه ګټه لري چې«اوبه»، «ځمکه»، «غر»، «ځنګل»، «کب»، «سړی»، «قدم وهل»، «تر سره کول»، «تولیدول»، «سوداګري» او. . . لپاره «اوبه»، «ځمکه»، «غر» او . . . کلیمې ونه کاروو او پر ځای نوې کلیمې وکاروو؟څه ګټه لري چې په ژبه کې د لغتونو ادلون ـ بدلون او په جملو کې د کلیمو ترکیبول د اوسنی ګرامري سیستم له مخې ونشي او بېخي نوی ګرامر رامینځته شي؟په یوه ژبه کې د داسې یو اساسي بدلون ګټه به انقلاب ته څه وي؟ په ټولیز ډول هیڅ مهمه چاره په تاریخ کې بې‌له ځانګړې اړتیا نه پېښېږي.نو په داسې حال کې چې شته ژبه او جوړښت یې د نوي سیستم له اړتیاوو سره په اساسي ډول اړخ لګوي، بیا ژبني انقلاب ته څه اړتیا ده؟په ټولنه کې د مولده ځواکونو د آزاد پرمختګ لپاره ښایي او کېدای شي چې زَړَه مخبنا د څو کلونو په ترڅ کې نابوده او نوې مخبنا یې‌ځای ونیسي، خو څنګه کېدای شي د څو کلونو په ترڅ کې شته ژبه نابوده او په ځای یې‌نوې ژبه رامینځته کړو، پرته له دې چې ټولنیز ژوند ګډوډ او

ټولنه د شیندلو له ګوابښ سره مخ کړو؟ پرته له ډُن کیشوته څوک دغه دنده په غاړه اخلي[۲]؟!

د دې پوښتنې په پای کې د مخبنا او ژبې تر منځ یو بل اساسي توپیر ته اشاره کوو:مخبنا په مستقیم ډول د تولید او د انسان له تولیدي فعالیتونو سره اړیکه نلري او یوازې د اقتصاد او بېخبنا د لارې له تولید سره غیرمستقیمه اړیکه لري.د همدې لپاره مخبنا نشي کولای په مولده ځواکونو کې بدلون ژر او په مستقیم ډول منعکس کړي، بلکې په بېخبنا کې له بدلون وروسته دې بدلون ته انعکاس ورکولی شي. دا په دې مانا ده، چې د مخبنا د کړنې ډګر کوچنی او محدود دی.

ژبه د مخبنا په عکس د انسان له ټولو تولیدي فعالیتونو سره سیده اړیکه لري. نه یوازې د انسان له تولیدي فعالیتونو، بلکې د انسان د کاري چاپېریال له ټولو اړوندو کړنو سره، له تولید څخه تر بېخبنا او له بېخبنا څخه تر مخبنا پورې اړیکه لري. د همدې لپاره ژبه په تولید کې بدلونونه ژر او په سیده توګه منعکسوي بې‌له دې چې بېخبنا کې بدلونونو ته په تمه پاتې شي.نو ځکه وایو چې د ژبې د عمل ډګر، چې د انسان د کړنو ټولې برخې رانغاړي، د مخبنا په پرتله ډېر پراخه، هر اړخیزه او تقریباً نامحدود دی.

دا چې ولې ژبه او ترجیحاً د ژبې لغوي زېرمه په دایمي ډول بدلون مومي، لامل یې د ژبې د عمل ډګر او مستقیمه اړیکه ده. د صنعت او کرنې، د سوداګرۍ او

[۲] ډُن کیشوت (Don Quixote) چې په اسپانیایي کې ورته ډُن کیخوته وایي، د اسپانیایي لیکوال سروانتس ساآودرا (۱۵۴۷-۱٦۱٦) لیکلې رمان دی، چې یو پخوانی رمان ګڼل کیږي. ډُن کیخوته د هغه چا ژوند انځوروي چې له ظلم او ستم څخه د خلکو د ژغورنې په پار تخیلي چلند لري او داسې عجیبې کړنې کوي چې د خلکو له ملنډو سره مخ کیږي. پښتو. ژ.

ترانسپورت، د تکنالوجۍ او ساینس دوامداره تکامل دا اړینوي چې ژبه خپله لغوي زېرمه له نویو کلیمو او اصطلاحاتو سره پیاوړي کړي څو هغه اړتیاوې چې دا برخې یې د کارولو لپاره لري، پوره شي. ژبه په مستقیم ډول دا نوې اړتیاوې منعکسوي او خپله لغوي زېرمه له نویو کلیمو سره پیاوړې او خپل ګرامري سیستم بشپړوي.

نو پایله دا چې:

۱. یو مارکسیست، ژبه د بېخبنا، مخبنا نه ګڼي؛

۲. له مخبنا سره د ژبې مغشوشول ستره تېروتنه ده.

**پوښتنه:**آیا دا سمه ده چې ژبه پخوا طبقاتي وه او له دې وروسته به هم طبقاتي وي او په ټولنه کې داسې یوه واحده او مشترکه ژبه شتون نلري، چې غیرطبقاتي وي او ټول خلک یې ګډه ژبه وګڼي؟

**ځواب:** نه، دا سمه نه ده.

د دې موضوع په پوهېدو کې کومه ستونزه نشته چې په کومو ټولنو کې چې طبقات شتون نلري، هلته اصلاً د طبقاتي ژبې خبره مطرح کېدای هم نشي.د لومړني کمون په طایفه ای ټولنه کې طبقات موجود نه وو او طبقاتي ژبې هم شتون نه درلود او ټولنې یوه واحده او مشترکه ژبه درلوده. د لومړني کمون په ګډون د انساني ټولنو لپاره د ژبې لپاره طبقاتي مفهوم کارول له کلیماتو سره هغه لوبه ده چې ردولو ته یې اړتیا نشته. دا به ډېر ساده توب وي چې وغواړو له کلیمو سره په لوبېدو د طبقې مفهوم د ژبې په ګډون پر هر څه وتپو. له طایفه ای ژبو تر قبیله اي ژبو، له قبیله اي ژبو تر ملیتونو ژبو او له ملیتونو ژبو تر ملتونو ژبو پورې د ژبې وروستی تکامل ښکاره کوي چې ژبه د اړیکو د وسیلې په توګه د هرې ټولنې خلکو

ته بی له دې چې ټولنیز وضعیت یې په پام کې ونیسي، په مساوي ډول خدمت کړی او دا خدمت یې د خپل  تکامل په هر پړاو کې تر سره کړی دی.

دلته مې موخه د مریېتوب پېر یا د منځنی پېړۍ له امپراتوریو نه دی. په دې پېر کې د کورش او سکندر او سزار او شارلماني امپراتوریو کوم اقتصادي بنسټ نه درلود او پوځیان یې بی ثباته او اداري سازمانونه یې لنډمهاله وو. په دې امپراتوریو کې واحدې او ګډې ژبې شتون نه درلود، چې ټول خلک وربانديې پوه شي.دا امپراتورۍ د قبیلو او ملیتونو هغه ګډوله وه، چې هر یو یې ځانګړی ژبه او د ژوندانه خاصه طریقه لرله. نو موخه مې دا امپراتورۍ او یا ورته نور نظامونه نه دي، بلکې هغه قبیلې او ملیتونه دي چې د دې امپراتوریو په مینځ کې او یا د هغوې د یوې برخې په توګه یې خپل اقتصادي بنسټونه او ځانګړی لرغوني ژبې درلودی.تاریخ وایي چې د دې قبیلو او ملیتونو ژبې طبقاتي ژبې نه وی او د یادو قبیلو او ملیتونو ټول وګړي وربانديې پوهیدل.

البته د دې ژبو تر څنګ ګړدودونه او سیمه ایزې ژبې هم موجودې وي، چې د قبیلو او ملیتونو د مشترکې او واحدې ژبې تر اېل لاندې وې. مشترکې ژبې، دا ګړدودنه او سیمه ایزې ژبې اېلولې.

وروسته دپانګوالۍ د راځرګندیدو او د فئوډالي سیستم د نابودۍ او د ملي بازارونو له پیدایښت سره، دا منفرد او بېلابېل ملیتونه په واحدو ملتونو بدل شول او د ملیتونو ژبې د ملتونو په ژبو واوښتی. تاریخ روښانوي چې ملي ژبې طبقاتي ژبې نه وی، بلکې هغه مشترکې ژبې وی چې د یو ملت ټول وګړي وربانديې پوهېدل او د ملتونو واحدې ژبې ګڼل کېدې.

دا خبره مو یاده کړه، چې ژبه د خلکو د اړیکو د وسیلې په توګه د یوې ټولنې ټولو طبقاتو ته په مساوي ډول خدمت کوي او په دې ډول د طبقاتو په وړاندې بې‌پرې ده. خو خلک، بېلابېلې ټولنیزې ډلې او طبقات د ژبې په وړاندې بې‌پرې چلند نه لري.دوې کوښښ کوي د خپلو ګټو لپاره ژبه وکاروي او د خپل پوړ د لغتونو ځانګړې زیرمې، ځانګړي اصطلاحات او ځانګړي عبارتونه پر مشترکې ژبې وتپي. د شتمنو طبقاتو لوړ قشرونه، په ځانګړي توګه اریستوکراتیک اشرافیت او د بورژوازۍ پورتنی پوړونه چې ځانونه یې له خلکو جلا کړي او له خلکو کرکه لري هڅه کوي د «طبقاتي»ګړدودونو، ځانګړي اصطلاحاتو او د بډایې ډلې د «ژبې» په رامینځته کولو سره په دې برخه کې هم ځانونه له خلکو جلا کړي. دا ګړدودونه او ځانګړي اصطلاحات اکثراً په ادبیاتو کې په غلطه د ژبې په توګه پېژندل کېږي او د«اشرافیت ژبې»یا د«بورژوازۍ ژبې»په وړاندې د«پرولتاریا ژبه»یا د«بزګرانو ژبه» یادېږي. د همدې لپاره په ډېرې حیرانتیا وینو چې ځینې ملګري دې پایلې ته رسیږي چې ملي ژبه یوه افسانه او خیال دی او په واقعیت کې یوازې طبقاتي ژبه شتون لري.

زما په باور دا پایله بېخي غلطه ده.آیا دې ګړدودونو او ځانګړو اصطلاحاتو ته ژبه ویلی شوو؟ هیڅکله نه! ځکه:لومړی، دا ګړدودنه او ځانګړي اصطلاحات خپل ګرامري سیستم او اساسي لغوي زېرمې نه لري، دا دواړه له ملي ژبې پور اخلي. دوېم، د دغه ګړدودونو او ځانګړو اصطلاحاتو ساحه ډېره محدوده ده. یوازې د معینې طبقې په اعیان پوړ کې کارول کیږي او په ټولنه کې د عامو انسانانو تر مینځ د اړیکو د وسیلې په توګه وړتیا نلري.نو بیا دا ګړدودونه او د یو خاص پوړ ځانګړي اصطلاحات څه لري؟ دا د ځانګړو کلیمو هغه ټولګه ده چې د اشرافیت او د بورژوازۍ د عیان پوړ ذوق منعکسوي؛ یو شمېر ټاکلي اصطلاحات او عبارات دي چې په نره توب او مودبانه ادا ځان بېلوي او د ملي ژبې له «زیږو»

اصطلاحاتو او عباراتو پاک دي. بالاخره یو ټاکلی شمېر بهرني لغتونه هم احتوا کوي.خو ټول بنسټونه، د لغاتو ټاکنده برخه او ګرامري جوړښت له عامې ژبې، له ملي ژبې څخه په پور اخلي. له همدې کبله دا ګړدودنه او اصطلاحات د عامې ملي ژبې فرعي څانګې دي، چې له هر راز ژبني استقلال بی برخې او په انحطاط محکومې دي.

داسې باور چې کېداې شي دا ګړدودونه او ځانګړي اصطلاحات په یوې خپلواکې ژبې بدل او د دې جوګه شي چې ملي ژبه څنډې ته کړي او د هغې ځای ونیسي، د تاریخي لیددود هېرونه او د مارکسیستي دریځ د پرېښودنې په مانا ده.

ځینې د مارکس د«سپیڅلي ماکس» په نامه لیکنه راوړي چې وایي بورژوازي «خپله ژبه» لري چې د «بورژوازي محصوله»[3] او په سوداګریز روح سمباله ده. یو شمېر ملګري دا عبارت رانقلوي چې ثابته کړي چې مارکس د ژبې پر«طبقاتي ځانګړتیا» باور درلود او واحده ملي ژبه یې ردوله. که دا ملګري منصفانه چلند کوي، نو باید د مارکس د همدې مقالې یوه بله برخه رانقل کړي چې هلته مارکس د ملي ژبو د رامینځته کېدو پر لارو چارو غږېږي او وایي چې «د اقتصادي او سیاسي تمرکز په پایله کې بېلابېل ګړدودونه په واحده ملي ژبه کې راغونډ شول».[4]

---

[3] کارل مارکس او فردریش انګلس، آثار، برلین، ۱۹۵۸، دریم ټوک، مخ ۲۱۲.

[4] هماغه اثر، مخونه ۴۱۱-۴۱۲.

مارکس د ژبې د اعلی بنې په توګه پر واحدې ملي ژبې باور درلود چې ګړدودونه د ژبې د ادنی بنې په توګه اېلوي.

هغه ژبه چې مارکس یې د بورژوازي ژبه ګڼي او وایي چې «د بورژوازي محصوله ده» څه کېدای شي؟ آیا مارکس دا ژبه هغه ملي ژبه ګڼله چې خپل خاص ژبنی جوړښت لري؟ آیا موخه یې همداسې یوه ژبه وه؟ ښکاره ده چې نه! مارکس یوازې غوښتل ووایي چې بورژوازي واحده ملي ژبه له خپلې سوداګریزې خاصې صنفي ژبې سره ککړوي؛ یا په بله وینا بورژوازي خپل خاص سوداګریز صنفي اصطلاحات لري.

داسې ښکاري چې دې ملګرو د مارکس خبرې تحریف کړي. دوی بې‌له دې چې د موضوع منځپانګه وڅېړي، د مارکس خبرې نه د یو مارکسیست په توګه بلکې د یو دګماتیست په توګه رانقل کړي دي.

«په انګلستان کې د کارګرې طبقې وضعیت» تر عنوان لاندې د انګلس لیکنه، هغه بله سرچینه ده چې د سند په توګه کارول کیږي. انګلس لیکي چې په بریتانیا کې «. . . کارګره طبقه ورو ورو د انګلستان له بورژوازۍ څخه په یو جلا ملت بدلیږي» او «کارګران له بورژوازۍ څخه په جلا ګړدود خبرې کوي، بېل اند او نصب العین لري، دودونه او اخلاقي آرونه یې توپیر لري، همدا ډول د دین او سیاست په اړه دریځ یې هم له بورژوازۍ سره توپیر لري.»[٥] ځینې ملګري له دې مقالې داسې استنباط کوي چې ګواکې انګلس د عامې ملي ژبې اړتیا ردوي او د ژبې پر«طبقاتي ځانګړتیا» باور لري. سمه ده چې انګلس دلته له ګړدودونو غږیږي

[٥] هماغه اثر، مخونه ۴۱۱-۴۱۲.

نه له ژبو؛ خو په دې بشپړې پوهېدنې سره چې ګړدودونه د ژبې د څانګو په توګه د ملي ژبې ځای نیولی نشي. خو څنګه چې ښکاري دا ملګري د ژبې او ګړدود تر مینځ له شته توپیر سره کومه لېوالتیا نلري.

ښکاره ده چې دا نقل قول د پورتنۍ ادعا لپاره مناسب نه دی. ځکه انګلس دلته د «طبقاتي ژبې» په اړه نه غږیږي، بلکې له طبقاتي فکر، نصب العین، دود، اخلاقي معیار، دیني دریځ او سیاست څخه خبرې کوي. دا ښځي سمه ده چې د بورژوازي او پرولتاریا فکرونه، نصب العینونه، دودونه، اخلاقي آرونه، دیني او سیاسي دریځونه له یو بل سره مخالف دي. خو دا توپیرونه د واحدې ملي ژبې او د ژبې له «طبقاتي ځانګړتیا» سره څه تړاو لري؟ آیا په ټولنه کې د طبقاتي تضاد شتون، کولای شي د ژبې د «طبقاتي ځانګړتیا» د ادعا په ملاتړ او د واحدې او ملي ژبې د اړتیا د ردونې په پار کارنده تمام شي؟ مارکسیزم سره له دې چې په ټولنه کې پر طبقاتي تضادونو کلک باور لري، خو مشترکه ژبه د ملت جوړونې یوه بنسټیزه ځانګړنه ګڼي. آیا ملګري دا مارکسیستي تز قبلوي؟

د لافارګ[6] وینا هم راخیستل کیږي چې هغه په(«فرانسوي ژبه: له انقلاب مخکې او وروسته») رساله کې د ژبې «طبقاتي ځانګړتیا» منلی او د ټولو خلکو لپاره یې د مشترکې ملي ژبې اړتیا رد کړی ده.دا سمه نه ده. لافارګ په حقیقت کې د «اشرافو» یا د «نجباوو ژبې» او د هغوې د بېلابېلو ډلګیو له«ځانګړو اصطلاحاتو»

---

[6] پل لافارګ (۱۸۴۲-۱۹۱۱)د فرانسې او د نړیوال کارګري غورځنګ یو اوځار فعال او یو فوق العاده مارکسیست مروج او مبلغ و. لافارګ د فرانسې د کارګرانو ګوند یو تن بنسټ ایښودونکی و، د مارګس او انګلس شاګرد او نژدی کس او همدا ډول د مارکس د لور (لورا) خاوند و.

خبره کوي. خو دا ملګري هېروي، لافارګ چې د ژبې او د ځانګړو اصطلاحاتو تر مينځ له توپير سره لېوالتيا نه درلوده، په يو ځای کې ګړدودونه «ساختګي ژبه» او په بل ځای کې يې«د ځانګړي پوړ اصطلاحات»يادوي. يقيناً هغه په خپلې رسالې کې ويلی دي، چې «ساختګي ژبه، چې اشرافيان له نورو بېلوي. . . له هغې ژبې رامينځته شوی چې د ټولو خلکو لپاره مشترکه ده، هغه ژبه چې هم بورژوازي ورباندې خبرې کوي او هم صنعتګران، هم ښاريان ورباندې غږيږي او هم کليوال».

له دې سره لافارګ ته د هغې مشترکې ژبې شتون او اړتيا څرګنده ده، چې د ټولو خلکو لپاره د پوهېدو وړ وي. هغه په دې ښه پوهېږي چې د«اشرافو ژبه» او نور ګړدودونه او ځانګړي اصطلاحات د ټولو خلکو د مشترکې ژبې تابع دي او له ملي ژبې سره تړاو لري.نو د ژبې د«طبقاتي ځانګړتيا» د اثبات لپاره د سرچينې په توګه د لافارګ کارول، يوه بابېزه هڅه ده.

همدا ډول په دې حقيقت استناد کيږي، چې يو وخت په انګلستان کې فئوډالانو «د څو پېړۍ لپاره»په فرانسوي ژبې خبرې کولی، حال دا چې د خلکو ژبه انګليسي وه. له دې استناد سره هڅه کيږي چې د ژبې د «طبقاتي ځانګړتيا» د ادعا د ثابتولو او د ملي مشترکې ژبې د اړتيا له شتون سره د مخالفت لپاره ګټه واخيستل شي.خو دا د دليل پر ځای ډېره کيسي ته پاتې کيږي!اول، خو دغه وخت ټولو فئوډالانو په فرانسوي ژبې خبرې نه کولی، بلکې د انګلستان فئوډالې طبقې يوې کوچنۍ اعيانې برخې چې په دربار او د دربار په سياسي غونډو کې ګډون کاوه، په فرانسوي خبرې کولی. دويم، دا کومه «طبقاتي ژبه» نه وه چې دوې ورباندې غږېدل، بلکې هغه عادي فرانسوي ژبه وه چې ټولو فرانسويانو ورباندې خبرې کولی. دريم، په دې پوهېږو چې د وخت په تېرېدلو سره دا

فرانسوي ژبه پرته له دې چې کومه نښه پرېږدي ورکه شوه او ځای یې انګلیسي ژبې ونیو، چې د ټولو خلکو لپاره مشترکه ژبه وه. آیا دا ملګري ګمان کوي چې انګلیسي فئوډالانو «د پېړۍ پېړۍ لپاره» د ژباړونکو له لارې د انګلستان له خلکو سره اړیکې ټینګولې؟ دوې انګلیسي نه کاروله؟ آیا دا ملګري ګمان کوي چې دغه وخت د انګلستان خلکو لپاره مشترکه ژبه موجوده نه وه او په انګلستان کې فرانسوي ژبه داسې ژبه وه چې د واکمنې ټولنې له ژبې سره یې توپیر درلود او یوازې د انګلستان د اشرافیت په تړلي چاپېریال کې کاریدله؟ څرنګه یو څوک کولای شي په داسې یو ډول «استدلالونو» چې کیسې ته ورته دي، د ټولو خلکو لپاره د مشترکې ژبې شتون او اړتیا رد کړي؟

کله چې په روسیې کې اشرافیت واکمن و، د تزار درباریان او چارواکي فرانسوي ژبې ته لېوال شوي وو. دوې ویاړ ګڼلو چې په روسي ژبه د خبرو پر مهال، فرانسوي ګډه کړي او یا هم روسي په زیږه فرانسوي لهجه تلفظ کړي. آیا دا په دې مانا ده، چې دغه وخت په روسیې کې ټولو وګړو ته د پوهېدنې وړ روسي ژبه موجوده نه وه؟ آیا د ټولو خلکو لپاره عامه ژبه، یوازې یو خیال او «طبقاتي ژبه» یو حقیقت و؟

زموږ ملګري دلته لږ تر لږه دوې تېروتنې کوي:

لومړۍ تېروتنه دا ده چې ژبه له مخبنا سره مغشوشوي. دوې فکر کوي څنګه چې مخبنا طبقاتي ځانګړتیا لري، نو ژبه هم د دې په ځای چې د ټولو وګړو لپاره عامه وي، باید یوه طبقاتي ژبه وي. مخکې مې وویل چې ژبه او مخبنا دوه جلا مفهمونه دي او یو مارکسیست دا دواړه نباید ګډوډ کړي.

دویمه تېروتنه دا ده چې د بورژوازي او پرولتاریا تر مینځ د ګټو اختلاف او د دوې تر مینځ شدید طبقاتي تضاد؛ د ټولنې د غیرمتجانس کېدو په مانا ګڼي، چې په کې د متضادو طبقاتو تر مینځ هر ډول اړیکې شلېږي. دوې باور لري څنګه چې نوره واحده ټولنه نشته او ټولنه په طبقاتو ویشل شوې، نو د ټولنې واحدې ژبې، ملي ژبې ته هم اړتیا نشته. دوې وایي چې واحده اجتماع ونلرو نو د ټولو وګړو لپاره عامه ژبه نلرو، ملي ژبه نلرو؛ څه چې پاتې کیږي یوه طبقاتي ټولنه او «طبقاتي ژبه» ده.

طبیعي خبره ده چې هره «طبقاتي ژبه» باید خپل «طبقاتي» ګرامر ولري: «پرولتاریایي» ګرامر یا «بورژوایي» ګرامر. داسې ګرامرونه چیرې دی؟ د داسې ګرامرونو نشتون زموږ ملګري نه اندېښمنوي، ځکه باورمن دي چې دا ډول ګرامرونه به د وخت په تېرېدلو راڅرګند شي.

یو وخت زموږ په هېواد کې داسې«مارکسیستان»هم ول چې د اکتوبر له انقلاب وروسته یې ټینګار کاوه، چې د ریل کومې پټلۍ چې پاتې دي هغه بورژوایي پټلۍ دي او موږ مارکسیستانو ته نه ښایي چې ویې کاروو او باید ړنګې او پر ځای یې «پرولتاریایي» پټلۍ جوړې کړو. داسې کسان باید «سمخ مېشت» ونومولی شي!

ښکاره ده چې د ټولنې، د طبقاتو او د ژبې په اړه دا ډول وروسته پاتې انارشیستي نظر له مارکسیزم سره هیڅ ډول تړاو نلري. خو دا ډول نظر لا زموږ د ځینو سرګردانو ملګرو په مغزو کې خپل ځای لري.

دا خبره سمه نه ده چې د سختې طبقاتي مبارزې د شتون له کبله ټولنه په داسې طبقاتو وېشل شوې چې په یوې واحدې ټولنې کې له یو بل سره هیڅ ډول اقتصادي اړیکې لرلی نشي. برعکس، تر هغه چې پانګوالي ادامه لري، بورژوازي او پرولتاریا به د پانګوال نظام د اجزاو په توګه له یو بل سره په ټولو اقتصادي

فعالیتونو کې اړیکې ولري. بورژوازي نشي کولای خپل ژوند ته ادامه ورکړي او شتمنه شي، مگر دا چې مزدي کارگران تر واک لاندې ولري؛ پرولتاریا هم نشي کولای ژوند وکړي مگر دا چې خپل کاري ځواک په پانگوالو وپلوري. که د طبقاتو تر مینځ ټولې اقتصادي اړیکي ودرېږي، دا به د تولید د درېدنې په مانا وي او د تولید درېدنه به د ټولنې او د طبقاتو د نابودیدنې په مانا وي. طبیعتاً، یوه طبقه هم په خپل لاس د خپلې نابودۍ غوښتونکی نه ده. پایله دا چې طبقاتي مبارزه که هر څومره تېزه او سخته هم وي، د ټولنې د نابودیدو نه لامل کیږي. د مارکسیزم په اړه ناپوهي او د ژبې د ځانگړتیاو په هکله نه پوهېدنه، زموږ ځینې ملگري د ټولنې د نابودۍ او د «طبقاتي» ژبې او «طبقاتي» گرامر په تړاو افسانو ویلو ته اړ باسي.

د استناد ډگر پراخیږي. له لنین څخه هم ماخذ راوړل کیږي چې د پانگوالۍ په واکمنۍ کې یې پر دوو فرهنگونو ـ بورژوایي او پرولتاریایي فرهنگونو ـ باور درلود. لنین د پانگوالۍ په واکمنۍ کې د ملي کلتور شعار یو ناسیونالیستي شعار گڼلو. دا سمه ده او لنین یقیناً چې سم ویل. خو دا د ژبې له «طبقاتي ځانگړتیا» سره څه تړاو لري؟ کله چې دا ملگري هغه څه ته مراجعه کوي چې لنین یې د پانگوالۍ په واکمنۍ کې دوه جلا فرهنگونه یادوي، نو غواړي په ښکاره ډول لوستونکو ته دا نظر اثبات کړي چې په ټولنه کې د دوو بورژوایي او پرولتاریایي فرهنگونو شتون په دې مانا دی چې په دغه ټولنه کې باید دوه طبقاتي ژبې هم شتون ولري.او څنگه چې ژبه له فرهنگ سره تړاو لري، نو دا ملگري دې پایلې ته رسیږي چې لنین د یوې ملي واحدې ژبې اړتیا رد کړی او پر «طبقاتي» ژبو یې باور درلود.

هغه تېروتنه چې ملگري یې کوي له فرهنگ سره د ژبې گډول او مغشوشول دي. فرهنگ او ژبه دوه بېلابېل شیان دي. فرهنگ کولای شي بورژوازي یا سوسیالیستي وي خو ژبه د اړیکو د وسیلې په توگه تل د ټولو خلکو لپاره مشترکه

ده او بورژوازي او سوسیالیستي، دواړو فرهنګونو ته خدمت کولای شي. آیا دا حقیقت نه دی چې روسي، اوکرائیني او ازبکي ژبې، چې نن د دې ملتونو سوسیالیستي فرهنګ په چوپړ کې دي، د اکتبر له انقلاب دمخه د همدې ملتونو د بورژوایي فرهنګ په چوپړ کې وې؟ نو دا ملګري په ښکاره توګه تېروتنه کوي چې دې پایلې ته رسیږي چې د دوو فرهنګونو شتون د دوو بېلابېلو «طبقاتي» ژبو د زېږ سبب کیږي او د یوې واحدې ژبې اړتیا له مینځه وړي.

لنین کله چې د دوو فرهنګونو په اړه غږېږي، په سمه دا بیانوي چې د دوو فرهنګونو شتون د یوې واحدې ژبې د نفي او د دوو «طبقاتي» ژبو په مانا نه ده. لنین وایي چې باید یوه واحده ژبه شتون ولري.کله چې بوندیستانو[۷]پر لنین تور ولګاوه چې فرهنګ «غیرملي» ګڼي نو د ملي ژبې له اړتیا هم منکر دی؛ لنین، څنګه چې پوهېږو په قاطعانه ډول اعتراض وکړ او ویې ویل چې هغه د بورژوازي فرهنګ په وړاندې جنګیږي نه د ملي ژبو په وړاندې، څه چې اړتیا یې د مناقشې او مباحثې وړ هم نه ویني. د حیراني خبره ده چې زموږ یو شمېر دوستان د بوندیستانو په پل روان دي.

---

[۷] بوند ـ د لیتوانیا، پولنډ او روسي یهودو کارګرانو عمومي اتحادیه وه، چې د یهودو د کوچنۍ بورژوازي یو اپورتونیست سازمان و. د دې سازمان بنسټ د ۱۸۹۷ په اکتوبر کې په ویلنا کنګره کې کېښودل شو. بوند په ځانګړې توګه د لاسي صنایعو په برخه کې د بوختو یهودانو تر مینځ کار کاوه. د روسیې د کارګرانو د سوسیال ـ دموکرات ګوند په لومړۍ کنګره کې، چې په ۱۸۹۸ کال کې جوړه شوه، بوند له دې ګوند سره د «یو خپلواک او مستقل سازمان په توګه چې یوازې د یهودي پرولتاریا ځانګړو مسئلو ته یې پام درلود» یوځای شو. کله چې له ګوند سره یوځای شو نو د روسي کارګرې طبقې په غورځنګ کې یې نیشنلیزم او تجزیه پالنې ته لمن ووهله. د بوندیستانو بورژوا ـ نیشنلیستي دریځ د ایسکرا لخوا په پرېکنده ډول رد شو.

ځينې ملګري چې فکر کوي لنين د واحدې ژبې له اړتيا منکر و، ښه به وي چې د دا خبرې يې ولولي:

«ژبه د انسان د اړيکو لپاره ډېره مهمه وسيله ده. د ژبې يووالی او بی ځنډه تکامل، له معاصر پانګوال نظام سره د متناسبه، آزاده او پراخه سوداګريزو مبادلاتو يو مهم شرط دی.د ژبې يووالی په بېلابېلو طبقاتو کې د خلکو د آزادو او پراخو ډلو د نژدې کېدو يو مهم شرط دی. »[8]

دا روښانوي چې زموږ ښاغليو ملګرو د لنين نظريات په ناسم ډول وړاندې کړي دي.

بالاخره د ستالين خبره راخلي.د ستالين دا عبارت رانقلوي:«په دې پېر کې بورژوازي او ناسيوناليست ګوندونه يې د دې ملتونو ستر لارښود ځواکونه وو او لا هم دي.»[9] دا خبره سمه ده. هماغه ډول چې پرولتاريا او انترناسيوناليستي ګوند يې د پرولتري فرهنګ رهبري کوي، همدغه ډول بورژوازي او ناسيوناليست ګوند يې واقعاً هم د بورژوايي فرهنګ رهبري کوي. خو دا د ژبې «طبقاتي ځانګړتيا» سره څه تړاو لري؟ آيا دا ملګري په دې نه پوهېږي چې ملي ژبه د ملي فرهنګ يوه بڼه ده، چې کولای شي هم بورژوايي او هم پرولتاريايي فرهنګونو ته خدمت وکړي؟ آيا زموږ ملګري د دې مهم مارکسيستي فورمول په اړه خبر نه دي، چې

---

[8] ولاديمير ايليچ لنين،«د ملتونو د برخليک ټاکنې حق»، غوره آثار په دوو ټوکو کې، انګليسي نسخه، مسکو، ۱۹۵۲، لومړی ټوک، دويمه برخه، مخونه ۳۱۸-۱۹

[9] جوزوف ستالين، «لنينيزم او ملي مسئلې»، آثار، انګليسي نسخه، مسکو، ۱۹۵۴، يولسم ټوک، مخ ۳۵۳.

اوسني روسي، اکرائيني، بيلاروسي او نور فرهنګونه د منځپانګې له پلوه سوسياليستي او د بڼې له پلوه ملي دي؟؛ آيا په دې نه پوهېږي چې ژبه د بڼې له پلوه ملي ده؟ آيا دوې دا مارکسيستي فورمول نه قبلوي؟

زموږ د ملګرو تېروتنه دا ده چې دوې د فرهنګ او ژبې په مينځ کې توپير نه کوي او په دې نه پوهېږي چې د ټولنې د تکامل په هر پېر کې فرهنګ د منځپانګې له پلوه بدلون مومي، حال دا چې ژبه د څو پېرونو په بهير کې اساساً يو ډول پاتې کيږي او نوي او زاړه دواړو فرهنګونو ته يو شان خدمت کوي.

نو ويلی شوو:

الف ـ هغه ژبه چې د يوې ټولنې د خلکو لپاره مشترکه ده، د خلکو د اړيکو د وسيلي په توګه تل د ټولنې واحده ژبه ده او په راتلونکي کې به هم وي؛

ب ـ د ګړدودونو او ځانګړو اصطلاحاتو شتون، نه يوازې د ټولو خلکو لپاره مشترکه ژبه نه نفي کوي، بلکې د ملي ژبې د منلو تر څنګ، د مشترکې ژبې د يوې څانګې په توګه له ملي ژبې پيروي کوي؛

ج ـ د ژبې په اړه د «طبقاتي ځانګړتيا» فورمول کارونه تېروتنه او په ورته وخت کې يو غير مارکسيستي فورمول دی.

**پوښتنه:** د ژبې ځانګړي خصلتونه څه دي؟

**ځواب:** ژبه هغه اجتماعي ښکارنده(پديده) ده، چې د يوې ټولنې په فعاليتونو کې خپله ونډه لوبوي. ژبه د ټولنې له ژوند او تکامل سره ژوند او تکامل مومي او د ټولنې له مرګ سره مري. ژبه له ټولنې پرته شتون نلري او د تکامل قوانين يې

يوازې هغه وخت د پوهېدنې وړ دي، چې د ټولنې او د هغو خلکو له تاريخ سره په نه بېلېدونکې توګه مطالعه شي چې تر مطالعې لاندې ژبه ورسره تړاو ولري او د هغه پنځوونکي او زېرمه جوړونکي وي.

ژبه يوه وسيله ده. هغه افزار دی، چې په مرسته يې خلک له يو بل سره خبرې اترې کوي، اندونه سره بدلوي رابدلوي او يو بل پېژني. څنګه، چې ژبه له فکر سره مستقيم تړاو لري؛ نو فکر په کليمو کې ثبت او سمبالوي او بيا د کليمو د ترکيبولو له لارې هغه په جملو بدلوي. ويلی شوو چې ژبه د فکر او د انسان د فکري فعاليتونو د برياوو د بهير پايله ده، چې په انساني ټولنه کې د اندونو مبادله شوني کوي.

د اندونو مبادله يوه دايمي او حياتي اړتيا ده. بی له دې ناشوني ده چې د طبيعي ځواکونو په وړاندې د مبارزې او د اړينو مادي ارزښتونو د توليد لپاره د مبارزې په موخه د خلکو ګډې هڅې همغږی کړو. بې‌له ژبې د ټولنې د مولده فعاليتونو د بريا ډاډمنتيا ناشوني ده. نو ويلي شوو چې بې‌له ژبې د ټولنيز توليد بقا ناشوني ده. سربېره پر دې، په يوې ټولنه کې له هغې ژبې پرته چې د ټولو خلکو لپاره د پوهېدنې وړ او عامه وي، توليد نابودېږي او ټولنه له مينځه ځي. نو که له يوې خوا ژبه د اړيکو وسيله ده، په ورته وخت کې د ټولنې د مبارزې او پرمختګ وسيله هم ده.

د يوې ژبې ټولې کليمې د هغې ژبې د لغتونو قاموس جوړوي او په قاموس کې څه چې مهمه ده د لغتونو بنسټيزه زېرمه ده، چې د کليمو ريښې او مشتق شوی کليمې دواړه رانغاړي.که څه هم د ژبې د لغوي قاموس په پرتله د دې کليمو شمېر يو څه کم دی، خو عمر يې ډېر او پېړۍ پېړۍ ته رسيږي. دا کليمې د ژبې لپاره د نويو

لغتونو بنسټ جوړوي.د لغتونو قاموس د ژبې وضعيت څرګندوي:هر څومره چې د لغتونو قاموس بډای او متنوع وي، په هماغه کچه ژبه بډایه او پرمختللي وي.

خو د لغتونو زېرمه په خپل ذات کې ژبه نه جوړوي، بلکې تر ډېره د ژبې لپاره د ودانيزو موادو بڼه لري. څرنګه چې په ودانيزو چارو کې ودانيز مواد د ودانۍ د جوړېدو په مانا نه ده، که څه هم يوه ودانۍ بې له ودانيزو موادو جوړېدای نشي، همداسې د لغتونو زېرمه په يوازې توګه ژبه نه ده، خو بې له دې د ژبې تصور کېدای هم نشي. د يوې ژبې لغوي زېرمه هغه وخت خورا اهميت مومي، چې په ګرامري اډانه کې ځای په ځای شي. ګرامر د کليمو ادلون بدلون او په جملو کې د کليمو ترکيبول تنظيم او سمبالوي او ژبې ته يوه منسجمه او مهمه دنده وربخښي.

ګرامر(صرف و نحو) د هغو قواعدو ټولګه ده، چې د کليمو ادلون بدلون او په جملو کې د هغوې ترکيبول سمبالوي. د همدې لپاره بايد د ګرامر منندوی ووسو، چې د ژبې لپاره يې دا شونتيا برابره کړې چې د انسان د اندونو لپاره مادي ژبنی پوښښ برابر او افکار يې ولېږدوي.

د ګرامر مهمه ځانګړنه دا ده چې د کليمو د بدلون او سمون په پار قواعد وضع کوي، البته نه د ځانګړو کليمو لپاره، بلکې په ټوليزه توګه د ټولو کليمو لپاره قواعد جوړوي؛ دا قواعد خاصې کليمې په پام کې نلري. همدا ډول د جملې د جوړېدو لپاره قواعد وضع کوي، البته نه د ځانګړو مشخصو جملو لپاره. ښايي په لنډون ووايو چې ګرامر يوازې کوم خاص فاعل، يا کوم خاص مسند او نورو ته قواعد نه وضع کوي، بلکې په ټوليزه توګه ټولو جملو ته قواعد جوړوي، بې له دې چې د هغوې ځانګړې بڼې په پام کې ونيسي. نو ګرامر سره د دې چې له ځانګړو او خاصو کليمو او جملو سره سروکار نلري، د کليمو بدلون او سمون او په جملو کې د

دې کليمو ترکيبول او د ګرامري قواعدو او قوانينو پر بنسټ د دې جملو جوړول په مشترکه او اساسي ډول تر سره کوي.ګرامر د انساني مغز د تجريدي کړنو د پروسې اوږدمهال حاصل دی او د فکر تر ټولو حيرانونکی لاس ته راوړنه ګڼل کيږي.

د همدې پورتنې مسئلې په پام کې نيولو سره ګرامر، هندسه په ذهن کې تداعي کوي. هندسه هم د ځانګړو اشياؤ له تجريد څخه خپل قواعد اخلي؛ نه له ځانګړو مشخصو اجسامو څخه. هندسه هم د اجسامو تر مينځ اړيکه د ځانګړو مشخصو اجسامو د اړيکې له مخې نه تعريفوي او پرته له دې چې د اجسامو ځانګړو مشخصاتو ته پام وکړي د اجسامو اړيکې په عمومي ډول په پام کې نيسي.

د مخبنا په خلاف، چې له توليد سره سيده اړيکه نلري او د اقتصاد له لارې خپله اړيکه ټينګوي؛ ژبه په مستقيمه توګه د انسان له توليدي فعاليتونو او له استثنا پرته د انسانانو ټولو کاري فعاليتونو سره سيده اړيکه لري. د همدې لپاره د بدلونونو په وړاندې د ژبې قاموس حساس او له مداوم تغيير سره مخ دی.د مخبنا په خلاف، ژبه د بدلون لپاره د بېخبنا نابودۍ ته منتظره نه پاتی کيږي. د ژبې د لغتونو قاموس مخکې له دې چې بېخبنا نابوده شي، بدلون مومي او د بېخبنا له وضعيت سره کوم تړاو نلري.

خو د ژبې په لغتونو کې بدلون د مخبنا د بدلون په شان نه دی چې زاړه تري تم او نوي رامينځته شي، بلکې د نويو کليمو د زياتېدو له لارې د شته قاموس بډاينه ده، هغه نوي کليمې چې د ټولنيز سيستم له بدلون سره، د توليد، فرهنګ، ساينس او نورو برخو له تکامل سره رامينځته کيږي. که څه هم يو شمېر له دوده لوېدلي لغتونه عموماً د ژبې له قاموس څخه وځي، خو په ورته وخت کې يو شمېر زيات

نوي لغتونه ورزياتېږي. د ژبې د لغتونو اساسي زېرمه اساساً خوندي پاتې کيږي، چې د ژبې د لغتونو لپاره بنسټ ګرځي.

ښکاره ده چې د لغتونو د اساسي زېرمې ويجاړولو ته، چې د څو تاريخي پېرونو په بهير کې په موثر ډول ترې کار اخيستل شوی، هيڅ ډول اړتيا نشته. دا هم ښکاره ده، چې په لنډ وخت کې د لغتونو نوې بنسټيزې زېرمې جوړول ناشوني دي. د لغتونو د اساسي زېرمې، چې د څو پېړيو په بهير کې رامينځته شوي، نابودول به ژبه معلوله او د خلکو تر مينځ به راکړه ورکړه په بشپړه توګه ټکنی کړي.

د يوې ژبې د ګرامري سيستم بدلون، د ژبې د لغتونو د اساسي زېرمې له بدلون څخه ډېر ېڅ وي. د ژبې ګرامري سيستم، چې په پېرونو کې جوړ شوی او د يوې ژبې هډ او وينه جوړوي، د ژبې د اساسي لغوي زېرمې په پرتله ډېر ېڅ بدلون مومي. ښکاره ده، چې د وخت په تېرېدو سره د ژبې ګرامر هم بدلون مومي او لا بشپړيږي، خپل قواعد پياوړي کوي، لا يې مشخصوي او نوي قواعد خپلوي. خو له دې سره سره بيا هم د ګرامري سيستم بنسټونه د ډېرې مودې لپاره خوندي پاتې کيږي. څرنګه چې تاريخ ښيي دا سيستم څو پېرونه کيږي چې د ټولنې لپاره په موثره توګه خدمت کوي. نو ويلی شوو چې ګرامري سيستم او اساسي لغوي زېرمه د يوې ژبې بنسټ او د ژبې ځانګړی کيفيت ښکاره کوي.

تاريخ په ډاګه کوي چې ژبې د هغه ادغام په وړاندې، چې د فشار له امله تر سره کيږي، ډېر ټيکاو ښکاره کوي او پياوړی او غښتلی مقاومت څرګندوي.خو ځينې تاريخپوهان د دې پديدې د شننې پر ځای، يوازې د حيرانتيا په څرګندونې بسنه کوي، خو د دې لپاره کومه اړتيا نشته. د ژبې د پايښت دليل، د هغه ګرامري جوړښت او د کليمو د اساسي زېرمو پايېدل دي. د تُرکيې هم شانته کوونکو په سلګونه کلونه هڅه وکړه چې د بالکانيانو ژبې وځپي، سپکې او نابودې يې کړي.

په دې موده کې د بالکانیانو ژبو خورا زښت بدلون وموند. یو شمېر زیات ترکي لغتونه او اصطلاحات د بالکانیانو په ژبو کې وردننه شول، «یوځای کېدنې» او «جلا کېدنې» تر سره شوې، خو له دې سره سره بالکاني ژبې پاتې او مقاومت یې وکړ. ولې؟ ځکه چې د دې ژبو گرامري جوړښت او د کلیمو اساسي زېرمې له بنسټه خوندي پاتې وې.

له دې ځرگندېږي چې ژبه او د هغه جوړښت د یوه عصر محصول گڼلی نشوو. ځکه د ژبې جوړښت، گرامري جوړښت او د هغه د کلیمو اساسي زېرمه د څو عصرونو محصول دی.

کېدای شي داسې وانگېرو چې د معاصرې ژبې لومړنی او مقدماتي بنسټ د مرییتوب له پېر دمخه په لرغوني او ډېر زاړه پېر کې ایښودل شوی دی. دا ژبه هغه مهال له پېچلتیا تشه وه او د کلیمو قاموس یې ډېر ضعیف و، خو خپل گرامري سیستم یې درلود؛ سمه ده چې دا سیستم لومړنی و، خو په هر حال یو گرامري سیستم و.

د تولید لاپرمختگ، د طبقاتو پیدایښت، د خط او کتابت معرفي کېدل، د دولت راځرگندېدنه، چې د ادارې لپاره یې لږوډېر یوې منظمې مکاتبې ته اړتیا درلوده، د سوداگرۍ پراختیا، چې لا زیاتې منظمې مکاتبې ته اړه وه، د چاپ ماشین پیدایښت، د ادبیاتو پرمختگ؛ دا ټول د ژبې په تکامل کې د سترو بدلونونو لامل شول. په دې موده کې قبیلې او ملیتونه سره تجزیه شول، سره مخلوط شول، قطعه قطعه شول؛ وروسته بیا ملي ژبې او دولتونه رامینځته شول، انقلابونه تر سره شول او د زړو ټولنیزو سیستمونو ځای نویو سیستمونو ونیوه، چې دا ټول د ژبې او د هغه په تکامل کې د لازیاتو بدلونونو لامل شول.

خو سره د دې دا به لويه تېروتنه وي که فکر وکړو چې د ژبې تکامل د مخبنا د تکامل په شان تر سره شوی دی، یانې د نوي شي د جوړولو له لارې د هغه څه ورانول، چې لرو يې. واقعيت دا دی، چې د ژبې تکامل نه د شته ژبې د نابودېدو او نه هم د نوې ژبې د جوړولو له لارې، بلکې د شته ژبو د اصلي عنصرونو د پراختيا او بشپړتيا له لارې تر سره کېږي. د دې ترڅنگه، له يوه حالت څخه بل حالت ته د ژبې لېږدېدل نه د انفجار له لارې تر سره کيږي، نه هم د زړې ژبې د ناڅاپي نابودېدنې او د نوې ژبې د جوړونې له لارې، بلکې د نوي کيفي عنصرونو او د نوي ژبني جوړښت د اوږدمهاله او تدريجي تراکم له لارې او د زاړه کيفی عناصرو د تدريجي نابودېدو په وسيله تر سره کيږي.

ويل کيږي چې د ژبې د پړاويز تکامل تيوري يوه مارکسيستي تيوري ده، ځکه چې دا تيوري له زاړه کيفيت څخه یو نوي کيفيت ته د ژبې په لېږد کې، د ناڅاپه انفجار اړتيا يو شرط گڼي. ښکاره ده چې دا خبره ناسمه ده او ستونزمنه ده چې په دې تيورۍ کې داسې يو څه دې پيدا کړای شوو، چې له مارکسيزم سره ورته والی ولري.

که د پړاويز تکامل تيوري په رښتيا د ژبې د تکامل په تاريخ کې ناڅاپه انفجارونو ته ارزښت ورکوي، نو د دې تيوري وضعيت د خواشينۍ وړ دی! مارکسيزم د ژبې د تکامل په بهير کې په ناڅاپو انفجارونو، د موجودې ژبې په ناڅاپه مرگ او د نوي ژبې پر ناڅاپه جوړېدو باور نلري.کله چې لافارگ په فرانسه کې «د ۱۷۸۹ او ۱۷۹۴ کلونو تر منځ د ژبې د ناڅاپه انقلاب څخه» غږېږي، نو سمه خبره نکوي. (د لافارگ «د فرانسې ژبه تر انقلاب وړاندې او وروسته» جزوه دې وليدل شي).په دغه وخت فرانسه کې هيڅ ډول ژبنيز انقلاب نه دې تر سره شوی، ناڅاپي خو لا پرېږدئ. دا سمه خبره ده چې په دغه پېر کې د فرانسوي ژبې د

لغتونو قاموس په نویو کلیمو او اصطلاحاتو بډای شو، یو شمېر زړې کلیمې حذف شوی او د ځینو کلیمو مفهوم بدل شو. دا ټول هغه څه وو، چې تر سره شول. دا ډول بدلونونه په هیڅ توګه په دې مانا نه دي، چې د ژبې برخلیک دې وټاکي. په ژبه کې مهمه موضوع د هغه ګرامري جوړښت او د کلیمو اساسي زېرمه ده. خو د فرانسوي ژبې ګرامري سیستم او د کلیمو اساسي زېرمه نه یوازې د فرانسې بورژوازي انقلاب په پېر کې نابود نشول، بلکې له مهمو بدلونونو پرته خوندي پاتې شول او نه یوازې خوندي پاتې شول، بلکې تر اوسه پورې هم د معاصرې فرانسوي ژبې برخې دي. مجبور یم دا خبره وکړم چې د شته ژبې د ترې تم کولو او د نوي ملي ژبې د رامنځته کولو («د ناڅاپه ژبني انقلاب») لپاره د پنځو او شپږو کلونو لنډه موده، ډېره مسخره ښکاري، د دې کار لپاره پېړیو ته اړتیا ده.

مارکسیزم په دې باور دی، چې له زاړه کیفیت څخه نوي ته د ژبې بدلون د یوه انفجار، د شته ژبې د نابودۍ او یا د نوې ژبې د رامینځته کیدو له لارې نه تر سره کیږي، بلکې د نوي کیفي عناصرو د تدریجي تراکم او د زاړه کیفي عناصرو د تدریجي مرګ له لارې تر سره کیږي.

د هغو ملګرو د معلوماتو لپاره، چې د انفجارونو لېوال دي، په ټولیزه توګه باید وویل شي چې د انفجار د لارې له زاړه کیفیت څخه نوي کیفیت ته د بدلون قانون، نه یوازې چې د ژبو د تکامل د تاریخ په تړاو سم نه دی، بلکې د بېخبنا یا مخبنا د نورو ټولنیزو ښکارندو د ځانګړتیا په اړه هم تل صدق نکوي. دا قانون یوازې د هغه ټولنو لپاره لازمي مصداق مومي، چې په کې متخاصمې طبقې شتون ولري، خو د داسې ټولنو لپاره چې په کې متخاصمې طبقې شتون ونلري، په هیڅ ډول لازمي او حتمي نه ګڼل کېږي. موږ له اتوو تر لسوو کلونو موده کې د هېواد کرهنیز سیستم له انفرادي بورژوایي ـ دهقاني سیستم څخه په سوسیالیستي جمعي سیستم بدل

کړ. دا هغه انقلاب وو، چې په کليوالو سيمو کې پخوانی بورژوازي اقتصادي سيستم يې له مينځه يووړ او نوی سوسياليستي سيستم يې پر ځای جوړ کړ. خو دا انقلاب د چاودنې او انفجار له لارې، يعنې د شته حکومت د ړنگېدو او د نوي حکومت د جوړېدو له لارې پلي نشو، بلکې په کليوالو سيمو کې له پخواني بورژوازي سيستم څخه نوي سيستم ته د تدريجي لېږدولو له لارې تر سره شو. دا کار شونی و، ځکه دا انقلاب له پاسه پيل شو او د شته ځواک د نوښت او د بزگرو پرگنو د ملاتړ له امله بري ته ورسيد.

ويل کيږي چې په تاريخ کې د ژبې د امتزاج گڼ شمېر پېښې د دې باور لامل شوی، چې د انفجار او ناڅاپي بدلون له لارې له زاړه کيفيت څخه نوي کيفيت ته، د امتزاج پر مهال يوه نوې ژبه رامينځته کيږي. خو دا باور بېخي غلط دی. ژبنی امتزاج نشو کولای د هغه پرېکندې ضربې يوه واحده اغېزه وگڼو، چې د څو کلونو په ترخ کې پايلې ته رسيږي. ژبنی امتزاج هغه اوږدمهال بهير دی چې سلگونه کاله دوام مومي. د دې لپاره دلته د انفجار اړو پوښتنه نه رامنځ ته کېږي.

دا باور هم بېخي غلط دی، چې فکر وکړو د ساري په توگه د دوو ژبو د امتزاج پايله يوه نوې ژبه، درېمگړې ژبه ده، چې له مرکبو ژبو سره هيڅ ورته والی نلري او په کيفي توگه له دواړو ژبو توپير لري. حقيقت دا دی چې له ممزوجو ژبو، يوه ژبه بريالۍ راوځي، خپل گرامري سيستم او اساسي لغوي زېرمه ساتي او د خپل تکامل له ذاتي قوانينو سره سم تکامل مومي. حال دا چې بله ژبه سوکه سوکه خپل کيفيت له لاسه ورکوي او په تدريجي توگه مري. د پايلې په توگه ويلی شوو چې د امتزاج نتيجه، نوې، دريم گړې ژبه نه ده؛ يوه ژبه مقاومت کوي، خپل گرامري سيستم او اساسي لغوي زېرمه ساتي او دا ځواک لري چې د خپل تکامل له ذاتي قوانينو سره سم تکامل ومومي.

دا سمه خبره ده چې په دې بهیر کې تر یوې کچې د بریالۍ ژبې لغوي فرهنګ او قاموس د مغلوبې ژبې په کلیمو بډایه کیږي. دا کار ژبه نه یوازې نه کمزوروي، بلکې پیاوړې کوي. د مثال په توګه له روسي ژبې سره ورته چلند شوی دی. د تاریخي تکامل په اوږدو کې، له روسي ژبې سره د نورو ملتونو ژبو امتزاج موندو، چې په پای کې روسي ژبه تل بریالۍ کېدله. البته، په دې بهیر کې د روسي ژبې قاموس د نورو ژبو د کلیمو په جذبولو سره لا بډایه کېده. دې کار نه یوازې دا چې روسي ژبه کمزورې نه کړه، بلکې لا شتمنه او پیاوړې کړه.

که د روسي ژبې د ملي اصلیت ځانګړنه په پام کې ونیسو، نو هیڅ زیان یې نه دی لېدلی، ځکه خپل ګرامري سیستم او د اساسي لغتونو زېرمه یې ساتلې او د خپل تکامل له ذاتي قوانینو سره یې سم تکامل او بشپړتیا ته ادامه ورکړې.

نو په دې کې شک نشته چې د امتزاج تیوري د شوروي ژبپوهنې لپاره ډېر لږ او یا هیڅ ډول ارزښت نلري. که دا خبره سمه وي چې د ژبپوهنې بنسټیزه دنده د ژبې د تکامل د ذاتي قوانینو مطالعه ده، نو باید ومنو چې د امتزاج تیوري دا دنده نشي تر سره کولی، بشپړتیا یې خو لا پرېږده! دا تیوري یا دې مسئلې ته پام نه کوي او یا ورباندې نه پوهېږي.

**پوښتنه:**آیا د ژبپوهنې د مسئلو په اړه په «پراودا» کې د ښکاره بحث پیلول سم و؟

**ځواب:**هو، سم و.

دا چې د ژبپوهنې د مسئلې حل به کومې خوا ته لاړ شي، د بحث په پای کې به روښانه شي. خو له اوسه ویلی شوو، چې بحث ډېر ګټور وو. دې بحث د ټولو دمخه دا روښانه کړه، چې د ژبپوهنې په ارګانونو، څه په مرکز او څه هم په جمهوریتونو کې، داسې رژیم واکمن دی چې له پوهې او پوهانو سره نه سازېږي.

د شوروي د ژبپوهنې د وضعیت په اړه کوچنی نیوکه، ان د ژبپوهنې په اصطلاح د «نوي دکترین» په تړاو د انتقادونو ډارځپلې هڅې، د ژبپوهنې د برلاسه کړیو د ربړولو سره مخ او نیوکو ته اجازه نه ورکول کېده.

د ن.ی.مار[10] د میراث په وړاندې د انتقادي چلند او د هغه د ژبپوهنې له ښوونې سره د کوچنی نه هوکړې له امله؛ د ژبپوهنې ارزښتناک کارکوونکي او څېړونکي یا له دندو گوښه کېدل یا یې رتبې ټیټېدلې. ژبپوهان نه د وړتیا له مخې، بلکې د ن. ی.مار د تیوري گانو د کټ مټ منلو له وجې په لوړو دندو گمارل کېدل.

موږ باورمن یوو چې علم د اندونو له مبارزې او د نیوکې له آزادۍ پرته پرمختگ او وده نشي کولای. خو دا منل شوې قاعده په بشپړه بېغورۍ له پام غورځېده او سپکاوی یې کېده. یوه ډله رهبران راڅرگند شوي وو، چې ځانونه یې جایز الخطا نه گڼل او د خپلسري قانون له مخې له هر ډول احتمالي نیوکې څخه یې ځانونه خوندي ساتلي وو. څه چې یې خوښېدل هماغه یې کول.

دلته به یې یوه بېلگه راوړم:په اصطلاح «د باکو درسونه»(په باکو کې د ن.ی.مار ویناوې) چې په خپله لیکوال رد کړي او د بیا خپرېدلو ممانعت یې کړی، د دې واکمنې کړۍ په دستور(چې ملگری مشچانینوف یې د ن.ی.مار «مریدان» گڼي) بیا خپاره او له هیڅ ډول بیا کتنې پرته په ښوونیزو کتابونو کې درج شول. په دې مانا چې زده‌کړیالان یې دوکه کړي، رد شوي «درسونه» یې ورته د سمو درسونو په

[10] نیکولای یاکوفلویچ مار(Nikolay Yakovlevich Marr) گرجي ژبپوه و چې د ۱۸٦۴ نه تر ۱۹۳۴ یې ژوند کاوه. مار باور درلود چې لومړنی ژبه، چې نورو ژبو له هغه ریښه اخیستی، په حامی، سامی او یافثی درې کورنیو باندې تقسیمیږي. حام، سام او یافث د نوح زامن ول. مار ادعا لرله چې یافثي ژبه د ټولو ژبو مور ده. پښتو. ژ.

ځای تېر کړي دي. که ما د ملګري مشچانینوف او نورو مخورو ژبپوهانو په رښتینولي باور نه درلودی، نو دا کار مې یوه قصدي ویجاړونکي کړنه ګڼله.

دا کار ولې تر سره شو؟د دې لپاره تر سره شو چې تر ټولو مخکې د ژبپوهنې په برخه کې رامینځته شوی «آراکچیفي»[11] رژیم، چې غیرمسئولانه چلند یې دوداوه او خپلسریو کړنو ته یې لار خلاصوله بربنډ او دړې وړې کړ. د دې بحث ګټورتیا په دې پای ته نه رسیږي. دې بحث نه یوازې د ژبپوهنې په برخه کې پخوانی رژیم ړنګ کړ، بلکې د علم په دې څانګه کې یې د ژبپوهنې د بنسټیزو پوښتنو په تړاو د دې واکمنې کړې د اندونو نه باوریدونکی مغشوشتیا یې هم راڅرګنده کړه. د بحث له پیلونې دمخه، د ن.ی.مار «مریدان» چپه خوله وو او د ژبپوهنې د ناسمه وضعیت په اړه یې څه نه ویل. خو د بحث له پیلولو سره، چې چوپتیا نوره ناشونې وه، اړ شول خپل نظریات په مطبوعاتو کې څرګند کړي. پوښتنه دا ده چې څه مو پیدا کړل؟ و مولیدل چې د ن.ی.مار په تعلیماتو کې یو لړ نیمګړتیاوې، تېروتنې، د ناسمه تعریفونو ستونزې او نیمګړي وړاندیزونه شته. پوښتنه راولاړیږي چې ولې د ن.ی.مار«مریدانو» په دې اړه یوازې اوس، چې بحث پیل شوی، خبرې پیل

---

[11] آراکچیفي رژیم: د آراکچیف زورواکه پولیسي او بې بندو باره دیکتاتوري وه، چې د ۱۹ مې پېړۍ په لومړۍ څلورمه کې په روسیه کې د زور، ظلم او بلوس ډکه واکمني درلوده.

آراکچیف د لومړي الکساندر پر مهال د جګړې وزیر او بیا وروسته د دولتي شورا د پوځي چارو د کمیټې رئیس شو. هغه لومړی الکساندر ته نژدی و. آراکچیف، چې د دهقاني پاڅونونو ځپوونکی و، د سپیڅلي اتحاد پر مهال د روسیې د ارتجاع او د خپلسره پولیسي حکومت سمبول ګڼل کېده.

ستالین دا اصطلاح دلته د شوروي د ژبپوهنې په کړیو کې د ن.ی.مار بې سارې واکمنتیا او د هغه د «مریدانو» د خپلسرۍ لپاره کاروي.

کړي دي؟ ولې یې مخکې دا کار نه کاوه؟ ولې یې په خپل وخت کې په ښکاره او صادقانه ډول، څنګه چې د پوهانو وړ ده، په دې اړه خبرې نه کوولې؟

د ن.ی.مار«مریدان»د نوموړي پر«ځینو» تېروتنو له اقرار وروسته داسې فکر کوي، چې د شوروي ژبپوهنه یوازې د ن.ی.مار د تیوري د «اصلاح شوي» نسخې پر بنسټ کولای شي تکامل ومومي، هغه تیوري چې د هغوی په اند یوه مارکسیستي تیوري ده. موږ د ن.ی.مار له داسې«مارکسیزم» تېر یوو! ن.ی.مار واقعاً غوښتل او په رښتیا یې هم هڅه کوله چې مارکسیست ووسي، خو ونه توانېد. هغه د«پرولیت کویتستانو»[12]یا«رپیستانو»[13]په څېر مارکسیزم یوازې شډلوي او مبتذلوي.

ن.ی.مار په ژبپوهنه کې هغه ناسم او غیرمارکسیستي فورمول دننه کړ، چې له مخه یې ژبه مخبنا ګڼل کیږي، په دې سره یې هم ځان سرسام کړ او هم یې ژبپوهنه ګډوډه کړه. د شوروي ژبپوهنه د غلط فورمول پر بنسټ تکامل نه مومي. همدا ډول ن.ی.مار په ژبپوهنه کې یو بل ناسم او غیرمارکسیستي فورمول دننه کړ، چې د ژبې«طبقاتي ځانګړتیا» ده، چې په دې سره یې بیا ځان سرسام او ژبپوهنه لا ګډوډه کړه.د شوروي ژبپوهنه د داسې ناسمو فورمولونو پر بنسټ، چې د خلکو او ژبو له ټول تاریخي بهیر سره په مخالفت کې واقع کیږي، تکامل نشي کولای.

---

[12] د «پرولتارسکایاکونتورا» مخفف، چې مانا یې پرولتاریایي فرهنګ دی.

[13] د روسیې د لیکوالانو پرولتاریایياتحادیه. دا دواړه هغه بنسټونه ول، چې د «نړه پرولتاریي» مکتب تر نامه لاندې یې د ادبیاتو او هنر په برخه کې غلط او ناسم مفاهیم رامینځته کول. د اندونو یوه ځانګړنه یې دا وه چې تېر شتمن میراث ته یې پاملرنه نه درلوده. لومړنۍ تر دېرشم کال او دویمه یې د شوروي د لیکوالانو د ټولنې تر جوړېدو (۱۹۳۴)پورې موجود وه.

ن.ی.مار ژبپوهنې ته داسې گستاخانه، دوزمارانه او متکبرانه گړ ورووپېژند، چې له مارکسیزم سره پردی دی. دا گړ د ټولو هغو شیانو د بی بنسټه او پیکه ردیدو لامل کیږي، چې له ن.ی.مار وړاندی په ژبپوهنه کې تر سره شوي دي.

ن.ی.مار پر مقایسوي ـ تاریخي میتود باندې د «ایده الیستي» میتود په توگه په کلکه د بطلان کرښه کاږي. حال دا چې مقایسوي ـ تاریخي میتود د ځینو مهمو نیمگړتیاوو سره سره، بیا هم د ن.ی.مار له څلور عنصریزه[۱۴] واقعاً ایده‌الیستي شننې څخه ډېر ښه دی؛ ځکه چې لومړنی میتود د کار کولو د هڅونې او د ژبو د مطالعې زمینه برابروي، حال دا چې دویم میتود یوازې انسان هڅوي چې پر بازوداره څوکۍ خورووړ پرېوزي او د څلورو مشهورو عنصرونو د قهوې په پیاله کې فال ونیسي.

ن.ی مار د«اصلي ژبې»[۱۵]د تیوري د روښانېدو تر نامه لاندې، په مغرورتیا د شته ژبو د گروپونو(ځیل)د مطالعې په پار هر ډول کوښښ بې‌ارزښته گڼي. خو د ملتونو

[۱۴] څلور عنصریزه شننه:ن.ی.مار ادعا کوله چې د انسان د لومړنۍ ژبې تلفظ له څلورو سیلابونو تکامل کړی دی: sal، ber، yon او rosh.

[۱۵] د «اصلي ژبې» تئوري:د هندو اروپایي مکتب دکترین باور لري، چې ژبډلې په ځان کې د هغو سیمه ایزه گړدودونو(لهجې)یوه ډله رانغښتی، چې له عامې لرغوني «اصلي ژبې» جلا شوي دي. د ساري په توگه، عصري ایټالیوي، فرانسوي، اسپانیوي، پرتگالي او رومانیایي ژبې، هغه خویندې ژبې دي، چې له لاتین څخه مشتق شوي دي، خو په اصل کې دا ژبې یوازې بېلابېل گړدودونه دي. سره له دې چې هیڅ ډول مستند شواهد نشته، چې د اکثرو گړدودونو یا ژبو د«اصلي ژبې» شتون وښیي، خو د هندو اروپایي عالمانو د «اصلي ژبې» فرضیه راخیستی، چې عمده موخه یې د فونتیک(اصواتو) د بدلېدو د قاعدې د تشریح آسانتیا ده. هیڅ داسې لاره چاره نشته، چې د دې فرضیې د حقیقت کچه معلومه کړي.

د ژبو تر مينځ د خيښۍ انکار ناشونی دی، د بېلګې په توګه د اسلاو ملتونو د ژبې خيښي اړو پوښتنه نه راولاړوي. د دې ملتونو د ژبنيزې خيښۍ مطالعه به د ژبې د تکامل د قانون د مطالعې او ژبپوهنې په برخه کې ډېر ارزښتناکه تمام شي. بايد ووايم چې د «اصلي ژبې» تيوري، اړو له دې موضوع سره کوم تړاو نلري.

که چيرې ن.ی.مار او په ځانګړي توګه د هغه«مريدانو»ته غوږ شو، ښايي داسې ګمان وکړو، چې له ن.ی.مار وړاندې ژبپوهنې شتون نه درلود او ژبپوهنه د نوموړي له«نوي دکترين»سره راڅرګنده شوې ده.په رښتيا چې مارکس او انګلس زښت متواضع انسانان وو، هغوې به ويل چې ديالکتيک ماترياليزم يې، د علم او د تېرو پېړونو په ګډون د فلسفې د پرمختګ محصول دی.

نو دې پايلې ته رسيږو چې دا بحث د دې لپاره ګټور و چې د شوروي په ژبپوهنه کې ايډئولوژيکې نيمګړتياوې راوسپړي.

فکر کوم که د شوروي ژبپوهنه هر څومره ژر ځان د ن.ی.مار له تېروتنو خلاص کړي، هغومره به له اوسني کړکېچ څخه د ژغورنې شونتيا ولري.

زما په اند په ژبپوهنه کې د آراکچيفي رژيم نابودول، د ن.ی.مار د تېروتنو ردول او په ژبپوهنه کې د مارکسيزم دودول، هغه لاره ده چې د شوروي ژبپوهنه بډاينې ته رسوي.

پراودا، ۲۰ جون ۱۹۵۰

# د ژبپوهنې د ځينو مسئلو په اړه

## ملګري اي. کراشنينيکوا ته ځواب

ملگری کراشنینیکوا،

پوښتنو ته مو دلته ځوابونه وايم:

۱.**پوښتنه:**ستاسو مقاله په سمه څرګندوي، چې ژبه نه بېخبنا ده او نه مخبنا. آیا دا به سمه وي چې ژبه داسې یوه ښکارنده (پدیده) وګڼو، چې هم د بېخبنا او هم د مخبنا ځانګړتیاوې لري؟یا سمه به دا وي چې ژبه د دواړو تر مینځ د یوې منځګړي ښکارندې په توګه وشمېرل شي؟

**ځواب:**ښکاره ده چې ژبه د ټولنیزې ښکارندې په توګه هغه عمومي کیفیت لري چې د بېخبنا او مخبنا په ګډون، د ټولو ټولنیزو ښکارندو لپاره ذاتي کیفیت ګڼل کیږي:ژبه د ټولنې په چوپړ کې ده، څرنګه چې د بېخبنا او مخبنا په ګډون، ټولې ټولنیزې ښکارندې د ټولنې په چوپړ کې دي.که سم ځیر شوو نو و به ګورو چې د ټولنیزو ښکارندو دا ګډ کیفیت همدلته پای ته رسیږي. له دې ګډ کیفیت پرته، د ټولنیزو ښکارندو تر مینځ خورا مهم توپیرونه پیلېږي.

موضوع دا ده چې ټولنیزې ښکارندې له دې ګډې ځانګړتیا سربېره خپل ځانګړي خصوصیتونه هم لري چې هغوې له یو بل څخه بېلوي.همدا ځانګړي خصوصیتونه دي چې علم ته زیات اهمیت لري.د بېخبنا ځانګړی خصوصیت، ټولنې ته له اقتصادي پلوه خدمت دی، خو د مخبنا ځانګړي خصوصیتونه په سیاسي، قانوني، ښکلاپیژندنې او په فکري برخو کې ټولنې ته خدمت کول او تر څنګ یې د یوې ټولنې لپاره د متناسب سیاسي، قانوني او نورو اړوندو بنسټونو برابرول دي.

نو د ژبې خاصې ځانګړتیاوې چې له نورو ټولنیزو ښکارندو یې بېلوي، کومې دي؟ دا دي:د خلکو تر منځ د اړیکو وسیله، په ټولنې که د اندونو د مبادلې وسیله، د متقابلې پوهاوې وسیله او د انساني فعالیتونو په ټولو برخو کې، که تولیدي اړیکي وي او که اقتصادي، که سیاسي برخې وي او که فرهنګي، که ټولنیز ژوند وي او که خصوصي؛ د ګډ کار د سمبالنې له لارې ټولنې ته خدمت.

دا ځانګړتیاوې یوازې په ژبې پورې اړوندې دي او د همدې ځانګړې خصوصیتونه له کبله ژبه د یو خپلواک علم په توګه د مطالعې موضوع ده، چې ژبپوهنه ورته وایي.که ژبه دا خاصې ځانګړتیاوې ونلري، نو ژبپوهنه د یو خپلواک علم حق له لاسه ورکوي.

لنډه دا چې ژبه نه د بېخبناوو په ډله کې راځي او نه هم د مخبناوو په ډله کې. همدا ډول نشو کولای ژبه د بېخبنا او مخبنا تر منځ یوه «منځګړې» ښکارنده وګڼو، ځکه دا ډول «منځګړې» ښکارنده شتون نلري.

خو شاید وکړای شوو ژبه د تولیدي ځواک په ډله کې، یا په بله وینا د تولیدی افزارو په ډله کې راولوو؟ واقعاً د ژبې او تولیدي افزارو تر منځ تر یو حده پورې ورته والی شته: تولیدي افزار د ژبې په شان د طبقاتو په وړاندې بې پرې عمل کوي او د بېلابېلو طبقاتو، د ټولنې د زړو او نویو طبقاتو لپاره په یو ډول کارېدلې شي. خو آیا حق لرو چې ژبه د تولیدی افزارو په کتار کې راولو؟ نه، دا کار نشو کولای.

یو وخت ن.ی.مار وروسته له دې چې متوجې شو چې دې فورمول یې، چې «ژبه د بېخبنا پر بنسټ یوه مخبنا ده» مخالفتونه پارولي، نو د دې فورمول د بدلولو تابیا

يې وکړه او ويې ويل:«ژبه د توليد يو افزار دی». آيا مار حق درلود چې ژبه د توليد د افزارو په کتار کې راولي؟ ښکاره ده چې نه.

موضوع دا ده چې د ژبې او توليدي افزارو تر منځ ورته والی يوازې د هماغه ورته والي سره، چې ما يې يادونه وکړه، پای مومي. خو بلې خوا ته د ژبې او د توليدي افزارو تر منځ بنسټيز توپير موجود دی. دا توپير په دې کې دي چې توليدي افزار مادي ثروت توليدوي، حال دا چې ژبه څه نه توليدوي او يوازينی څه چې «توليدوي» هغه کليمې دي. په ساده ټکو کې بايد ووايو چې خلک د توليدي افزارو له تملک سره مادي ثروت توليدوي؛ حال دا چې هماغه خلک، که چيرې د توليدي افزارو په ځای ژبه په تملک کې ولري، مادي ثروت توليدولی نشي.که ژبه د مادي ثروت په توليد توانېده نو يو کړتن به د نړۍ تر ټولو شتمن انسان وی؛ په دې پوهېدل سخته خبره نه ده!

**۲.پوښتنه:**مارکس او انگلس ژبه د «فکر مستقيم واقعيت»، د «عملي. . . حقيقي فهم» په توگه تعريف کړی ده[۱۶].مارکس وايي «مفکوره» «له ژبې پرته شتون لرلی نشي».ستاسو په باور ژبپوهنه تر کومې کچې پورې ښايي د ژبې له مانايي اړخ، سمانتيک(ماناپوهنې)، تاريخي سماسيولوجي او سبک پوهنې سره ځان بوخته وساتي؛ يا يوازې موخه يې بايد پر بنې متمرکزه وي؟

**ځواب:**ماناپوهنه(سماسيولوجي)د ژبپوهنې يوه مهمه څانگه ده. د کليمو او اصطلاحاتو د ماناپوهنې اړخ د ژبې په مطالعې کې خورا اهميت لري. د همدې لپاره ښايي په ژبپوهنې کې ماناپوهنه (سماسيولوجي) خپل اړين ځای ولري.

---

[۱۶] کارل مارکس او فردريش انگلس، آثار، آلماني نسخه، برلين، ۱۹۵۸، دريم ټوک، مخونه ۴۳۰ او ۴۳۲.

خو له دې سره سره، د ماناپوهنې د مسئلو د طرح کولو او د مفروضاتو د کارونې پر مهال يې مهمه ده، چې په اړه يې اغراق ونشي او په ناوړه توګه ترې کار وانخيستل شي. زما موخه ځينې هغه کليمه پيژندونکي دي چې له ماناپوهنې سره افراطي لېوالتيا لري، بې له دې چې پام وکړي، ژبه د«فکر مستقيم واقعيت» دی او له فکر سره نه بېلدونکی تړاو لري. دا کسان ژبه له فکر جلا کوي او باور لري چې د ژبې عمر تېرېږي او شونتيا شته چې بی له ژبې هم ژوند وشي.

د ن.ی.مار دې کليمو ته پام وکړئ:

«ژبه يوازې له دې کبله شتون لري چې په اوازونو کې راڅرګندېږي؛ د تفکر عمل هم بی له دې چې څرګند شي، تر سره کيږي...ژبې(وينايي)وروستيو اختراعاتو ته د خپلې دندې سپارنه پيل کړی او دا اختراعات بې له شکه ټول ميدان نيسي. حال دا چې تفکر د غوړيدو په حال کې دی او له تېر بی ګټې تراکم څخه نوې کارونې ته يون کوي، ژبه له ډګر باسي او ځای ورته په بشپړه توګه نيسي. تفکر راتلونکی ژبه ده چې له طبيعي تخنيک او طريقې جلا، په آزادانه توګه تکامل مومي. هيڅ ژبه، ان وينايي ژبه چې د طبيعت له معيارونو سره په ورته توګه تړل شوی،د تفکر په وړاندې د مقاومت توان لرلی نشي.» (د ن.ی.مار منتخب آثار دې وليدل شي).

که دا د «جادوگرانه ـ کوښښ»[۱۷] اپلتې په بشري عادي ژبه وژباړو، پایله یې دا ده:

الف) ن.ی.مار، تفکر له ژبې جلا کوي؛

ب) ن.ی.مار عقیده لري چې خلک بی له ژبې د تفکر په مرسته هم کولای شي د یو بل په خبره پوه شي، هغه تفکر چې د ژبې له «طبیعې جوهر» او «طبیعي معیارونو» څخه آزاد دی؛

ج) له ژبې څخه د تفکر جلا کول او ژبه له «طبیعي جوهر» «خلاصول»؛ ن.ی. مار په ایډه الیستي ډنډ کې ډوبوي.

ویل کیږي افکار مخکې له دې چې د خبرو په بڼه راڅرګند شي د انسان په ماغزو کې ګرځي؛ له ژبني موادو پرته رامینځته کیږي او پرته له دې چې ژبنی پوښښ ولري په اصطلاح په بربنډ ډول رامینځته کیږي.خو دا بېخي غلطه ده.کله چې افکار د انسان په مغزو کې رامینځته کیږي او هره شېبه چې رامینځته کیږي، یوازې د ژبني موادو پر بنسټ رامینځته کیږي او موجودیت پیدا کوي. افکار د ژبې د اصطلاحاتو او عباراتو پر اساس رامینځته کیږي.

بربنډ افکار، له ژبني موادو او له «طبیعي جوهر» آزاد افکار شتون نلري. څنګه چې مارکس ویلي چې «ژبه د فکر مستقیم واقعیت دی» نو د فکر واقعیت په ژبه کې راڅرګندیږي. یوازې ایډه‌الیستان ویلی شي چې فکر د ژبې له «طبیعي جوهر» سره تړاو نلري او تفکر د خپل واقعیت لپاره ژبې ته اړتیا نلري.

---

[۱۷] ن. ی. مار باور درلود چې معمولي (وینایي) ژبه د خپل پیدایښت په لومړیو کې د جادوګرۍ وسیله او د غیب ویونکو جاودګرو په لاس کې وه. دا اصطلاح د مار له آثارو نقل شوی ده.

لنډه دا چې په سمانتیک(ماناپوهنه)کې اغراق او ناسمه کارونه، ایډه‌الیزم ته د ن.ی.مار د لېږد لامل شو. نو دې پایلې ته رسیږو که سمانتیک(سماسیولوجي) له هغه ډول اغراق او ناسمې کارونې څخه وساتل شي. چې ن.ی.مار او د هغه ځینې «مریدان» یې تر سره کوي، د ژبپوهنې لپاره خورا ګټور تمامیداې شي.

**۳.پوښتنه:**تاسوکاملاً سم وایی چې د بورژوازي او پرولتاریا افکار، مفاهیم، عادتونه او اخلاقي آرونه له یو بل سره مستقیماً متضاد دي.د دې ښکارندو طبقاتي ځانګړتیا ښکاره ده چې د ژبې په سمانتیک اړخ(او ځینې وختونه د ژبې پر شکل ـ د کلیمو پر زېرمې ـ څرنګه چې په مقاله کې مو ورته په سمه توګه اشاره شوی)اغېزه کوي. آیا کولای شوو د ژبپوهنې د خاصو موادو او په سر کې د ژبې د سمانتیک اړخ د شننې پر مهال د هغو مفاهیمو له طبقاتي منځپانګې خبرې وکړو چې د ژبې په وسیله څرګندېږي؟په تېره بیا په هغو مواردو کې چې ژبه نه یوازې د انساني افکارو د څرګندونې لپاره کارول کیږي، بلکې په ورته وخت کې د واقعیت په اړه د انسان چلند هم ښکاره کوي، هغه چلند چې په کې د انسان طبقاتي پیوستون او نږدې والی په ښکاره توګه څرګندېږي؟

**ځواب:**که دا خبره یو څه لنډه کړو، نو غواړئ پوه شئ چې آیا طبقات پر ژبه اغېز لري؟ آیا هغوې خپلې ځانګړي کلیمې او اصطلاحات ژبې ته معرفي کوي؟ آیا داسې بېلګې شته چې د خپل طبقاتي تړاو له مخې دې خلک یوې ټاکلې کلیمې او یا اصطلاح ته بېلابېلې ماناګانې وکاروي؟

هو طبقات پر ژبه اغېز کوي، خپلې ځانګړې کلیمې او اصطلاحات ژبې ته دننه کوي او کله هم له یوې او ورته کلیمې او اصطلاح بېلابېلې ماناګانې اخیستل کیږي. په دې کې شک نشته!

خو ځانګړې کليمې او اصطلاحات او همدا ډول په سمانتيک کې توپير د ټولو خلکو لپاره د عامې واحدې ژبې د تکامل په برخه کې جدي اهميت لرلی نشي او دا کليمې او اصطلاحات نشي کولای د ژبې اهميت کم او ځانګړتيا يې وربدله کړي.

ځکه چې:

لومړی، دا ډول ځانګړې کليمې او اصطلاحات او د سمانتيک توپيروالی په يوه ژبه کې ډېر کم دی، چې په سختۍ د يوې ژبې ټولټال يوه سلنه جوړوي. نو ويلی شو چې نژدې ټولې کليمې او اصطلاحات او همدا ډول سمانتيک يې د يوې ټولنې ټولو طبقو لپاره عام دی.

دوېم، ځانګړې کليمې او اصطلاحات چې يوڅه طبقاتي رنګ لري، له کوم «طبقاتي»ګرامري قاعدې سره(چې البته شتون نلري) په خبرو کې نه کارول کيږي، بلکې د عامې ژبې د ګرامري قاعدې مطابق کارول کيږي.

نو د همدې لپاره د خاصو کليمو او اصطلاحاتو شتون او د ژبې په سمانتيک کې د توپير واقعيت، نه يوازې دا چې د عامې واحدې ژبې شتون او اړتيا نه ردوي، بلکې دا اړتيا تاييدوي.

**۴.پوښتنه:**تاسو په خپله مقاله کې په سمه توګه، مار د مارکسيزم مبتذل کوونکی ګڼلی دی.آيا دا په دې مانا ده چې ژبپوهان، زموږ په ګډون ځوان ژبپوهان، بايد د مار د ژبپوهنې ټول ميراث رد کړي؛ د هغه چا ميراث، چې د ژبپوهنې په برخه کې د ډېرو ارزښتمنو څېړنو وياړلري؟ (کله چې بحث پيل شو، ملګرو چيکوباوا، سانژيف او نورو په دې اړه ليکنې کړي دي).آيا له مار سره د انتقادي چلند له امله نشو کولای هغه څه چې ګټور او ارزښتمن دي، ترې واېخلو؟؟

**ځواب:** ښکاره ده چې د ن.ی.مار په آثارو کې یوازې تېروتنې نشته، خو کله چې هغه په ژبپوهنه کې د مارکسیزم عناصر په تحریفي ډول وکارول، کله چې هغه کوښښ وکړ د ژبې یوه خپلواکه تئوري وړاندې کړي، نو ډېرې سترې تېروتنې یې وکړې.خو ن.ی.مار یو شمېر ښه، ګټور او پاخه لیکلي آثار هم لري، چې په هغو کې یې خپله تئوریکه ادعا هېره کړې او بېلابېلې ژبې یې په منصفانه، او باید ووایو په استادانه ډول تر شنني لاندې نیولي دي. په دې آثارو کې کولای شوو داسې ډېر شمېر شیان پیدا کړو چې ارزښتناک او ښوونیز دي. ښکاره ده چې دا ارزښتمن او ښوونیز شیان باید د ن.ی.مار له آثارو واخیستل شي او وکارول شي.

**۵.پوښتنه:** ډېر شمېر ژبپوهان، فورمالیزم د شوروي ژبپوهنې د غړنتیا له عمده لاملونو یو لامل ګڼي. ډېر لېوال یوو چې ستاسو په نظر پوه شوو چې په ژبپوهنې کې فورمالیزم څه ته وایي او څنګه کولای شوو ورباندې برلاسي شوو؟

**ځواب:**ن.ی.مار او «مریدان» یې هغه ژبپوهان چې د نوموړي «نوی دکترین» نه مني، په «فورمالیزم» تورنوي. ښکاره ده چې دا تور بی بنسټه او نامعقول دی.

ن.ی.مار ګرامر یوه تشه «فورمالیته» ګڼي او هغو کسانو ته چې ګرامري سیستم د ژبې بنسټ ګڼي فورمالیستان وایي، چې دا کاملاً احمقانه ده.

فکر کوم «فورمالیزم» د «نوي دکترین» د لیکوالانو لخوا اختراع شوی، چې په ژبپوهنې کې د مخالفینو په وړاندې خپله مبارزه اسانه کړي.

د شوروي د ژبپوهنې د غړندتیا لامل د ن.ی.مار او د هغه د «مریدانو» لخوا اختراع شوی «فورمالیزم» نه، بلکې په ژبپوهنه کې آراکچیفي رژیم او تئوریکی نیمګړتیاوې دي. آراکچیفی رژیم د ن.ی.مار د «مریدانو» لخوا رامینځته شو. په ژبپوهنه کې تئوریکه سرګرداني د ن.ی.مار او د هغه د نژدې همکارانو لخوا

رامینځته شوه. د دې غړندتیا پای ته رسولو لپاره آراکچیفي رژیم او تئوریکه سرګرداني باید له مینځه لاړه شي. د دې طاعوني ټپونو لېرې کول به د شوروي ژبپوهنه ورغوي، سمې لارې ته به یې برابره او د شوروي ژبپوهنه به قادره کړي چې د نړۍ په ژبپوهنې کې لومړی ځای خپل کړي.

**۲۹ جون ۱۹۵۰**

(پراودا، ۴ جولای ۱۹۵۰)

# ملگرو ته ځوابونه

## ملگري سانژيف ته

ښاغلی ملگريه سانژيفه،

ليک ته مو ځکه له ډېر ځنډ وروسته ځواب وايم، چې همدا پرون يې د مرکزي کميټې له سيستم څخه ما ته راولېږه. بې له شکه د گړدودونو په اړه زما دريځ دې سم تفسير کړی دی.«طبقاتي» گړدودونه، ښه به وي چې ځانگړې کليمې او اصطلاحات ونومول شي، د پرگنو لخوا نه کارول کيږي، بلکې د ټولنې پورتنی کوچنی قشر ترې استفاده کوي. سربېره پر دې دا ډول گړدودونه خپل گرامري سيستم او د کليمو بنسټيزه زېرمه نلري، نو خپلواکو ژبو ته بدلېدلې نشي.

خو بل اړخ ته سيمه ايزه («محلي») گړدودونه د پرگنو لخوا کارول کيږي او خپل گرامري سيستم او د ځانگړو کليمو بنسټيزه زېرمه لري. له دې کبله ځينې سيمه ايزه گړدودنه د ملتونو د جوړېدو په بهير کې دا شونتيا مومي چې ملي ژبو ته بنسټ چمتو کړي او خپلواکو ملي ژبو ته تکامل وکړي. د بېلگې په توگه د روسي ژبې د کورسک ـ اورېل گړدود (کورسک ـ اورېل «خبرې») چې د روسي ملي ژبې پيلامه يې جوړه کړه. دا خبره د اوکرائيني ژبې د پولتاوا ـ کيف گړود په اړه هم سمه ده، چې د اوکرائنيي ملي ژبې لپاره يې بنسټ جوړ کړ. خو د دې ژبو نورو گړدودونو خپله اصيلتيا ورکه او د دغو ژبو سره يوځای او په هغوې کې ورک شول.

معکوس بهير هم رامينځته کيږي، کله چې يو مليت د اقتصادي پرمختگ د اړينو شرايطو د نشتون له امله په ملت نه بدلېږي او د دغه مليت واحده ژبه په دولت کې د مليت د نه ادغام له امله له مينځه ځي. خو سيمه ايزه گړدودنه، چې لا يې وخت

نه دی پیدا کړی چې په واحده ژبه کې په بشپړه توګه ګډ شي، بیا راژوندی کیږي او د جلا خپلواکو ژبو د جوړېدو پیلامه جوړوي. ممکن، دا بېلګه د ساري په توګه د منګولیایي واحدې ژبې په اړه سمه وي.

۱۱جولای ۱۹۵۰

پراودا، ۲ اګست ۱۹۵۰

## ملګرو د. بلکین او س. فورر ته

ستاسو لیکونه مې تر لاسه کړل.

تېروتنه مو په دې کې ده، چې تاسې دوه بېلابېلې موضوعګانې سره ګډې کړې او ملګري کراشنینیکوا ته زما د ځواب د بحث موضوع مو له بلې موضوع سره بدله کړې ده.

۱. ما په خپل ځواب کې پر ن.ی.مار، چې د ژبې (وینايي) او فکر په موضوع کې، ژبه له فکر جلا کوي او په دې ډول ایډیالیزم ته ولیږي، نیوکه کړې وه.ما د همدې لپاره د هغو نورمالو انسانانو یادونه کړې چې د خبرو فکري استعداد لري. زه لا ډېر باوري شوی یم، چې د دې شان انسانانو تفکر یوازې د ژبني موادو په اساس رامینځته کیږي. هغه لغړ فکر، چې له ژبني موادو سره تړاو نلري، د هغو خلکو په مینځ کې شتون نلري چې د خبرو فکري استعداد لري.

تاسې د دې په ځای چې دا تز ومنئ او یا یې رد کړئ، هغو غیرنورمالو انسانانو ته اشاره کوئ، چې بې ژبې، کاڼه او ګونګیان دي او د خبرو لپاره ژبه په اختیار کې نلري. نو ښکاره ده، چې د هغوې فکر د ژبني موادو پر بنسټ نه رامینځته کیږي. څنګه چې ګورئ دا موضوع بېخي بله موضوع ده او ما تر بحث لاندې نیولی نه ده او نیولی یې هم نشم، ځکه ژبپوهنه له هغو عادي انسانانو سره تړاو لري، چې د خبرو استعداد لري، نه له هغو غیر عادي کاڼو ـ ګونګیانو سره چې د خبرو کولو استعداد ونلري.

تاسې د بحث موضوع له یو بل مطلب سره، چې زموږ د بحث موضوع نه ده، بدله کړې ده.

۲.د ملګري بلکين له ليک څخه څرګندېږي، چې هغه د «الفاظو ژبه»(وينايي ژبه) د «حرکتونو او اشارو ژبې»(د مار په اصطلاح«لاسي» ژبې)سره برابره ګڼي. داسې ښکاري چې د هغه په فکر د حرکتونو او اشارو ژبه او د الفاظو ژبه يو ډول اهميت لري او کله چې انساني ټولنو د الفاظو ژبه نه درلوده، «لاسي» ژبې د الفاظو د ژبې پر ځای، چې وروسته رامينځته شوه، کارېدله.

که ملګری بلکين په رښتيا دا ډول فکر کوي، نو لويه تېروتنه کوي. وينايي ژبه يا د الفاظو ژبه د بشري ټولنې هغه يوازينۍ ژبه ده چې کولای شي د خلکو د اړيکو د مناسبې وسيلې په توګه تل کارنده ووسي.تاريخ داسې انساني ټولنه، ان ډېره وروسته پاتې ټولنه نه پيژني چې خپله ځانګړې وينايي ژبه ونلري. توکمپيژندنه (ايتنوګرافي) داسې يو وروسته پاتی قوم نه پيژني چې خپله وينايي ژبې يې نه وي درلودلې، که په تيرې پېړۍ کې د استراليايانو او يا د تييرا دل فيګو[18] په څېر زاړه او ان ډېر لرغوني قومونه هم وي.د بشريت په تاريخ کې وينايي ژبه يو له هغو ځواکونو څخه وه چې له انسانانو سره يې مرسته وکړه چې د ژويو له نړۍ بېل، په ټولنو کې سره راټول او خپل د تفکر استعداد پرمختللی او ټولنيز توليد تنظيم کړي، د طبيعي ځواکونو په وړاندې برياله مبارزه مخ ته بوځي او نني پرمختګ ته ورسيږي.

د همدې لپاره په اصطلاح د حرکتونو او اشارو ژبه، چې ضعيفه او محدوديتونه يې زيات دي، د غږېدو وړ نه ده. دا اصلاً کومه ژبه نه ده، ان د ژبې ځايناستی يې

[18] تييرا دل فيګو په لاتينه امريکې کې پرته سيمه ده، چې اوس د ارجانتين او چيلي تر مينځ ويشلی شوی ده. دا سيمه، چې د «اور ځمکې» په نامه يادېږي يو له هغه لرغونو سيمو ده، چې تر ټولو پخوانيو انسانانو په کې ژوند درلود ـ پښتو. ژ.

ګڼلی نشوو، چې په يو ډول نه يو ډول د وينايي ژبې پر ځای وکارول شي. د حرکتونو او اشارو ژبه، که څه هم ډېر زيات محدود امکانات لري، خو د يوې مرستندويه وسيلې په توګه يې انسان کله ناکله د خپلو خبرو پر دغه يا هغه ټکي د ټينګار په موخه کاروي. څرنګه چې ساده لرګين رمبی د يو پرمختللي پنځه‌پال ځنځيري تراکتور يا د تخم شيندنې تراکتور سره پرتله کيدای نشي، همدا ډول د حرکتونو او اشارو ژبه له وينايي ژبې سره د پرتلې وړ نه ده.

۳. داسې ښکاري چې تاسې لومړی له کڼو ـ ګونګيانو سره لېوالتيا لرئ، بيا د ژبپوهنې له مسئلو سره. داسې برېښي چې دقيقاً همدې وضعيت هڅولی يې، چې يو لړ پوښتنې له ما وکړې. ښه خبره ده، که تاسې ټينګار کوئ، زه ستاسې د هيلې د پوره کېدو مخالف نه يم.

د کڼو ـ ګونګيانو موضوع څه ده؟ آيا دوې د فکر کولو استعداد لري؟ آيا کولای شي افکار وزېږوي؟ هو، هغوې د فکر کولو استعداد لري او د هغوې په مغزو کې افکار رامينځته کيږي. ښکاره ده، له هغه ځايه چې کاڼه ـ ګونګيان د خبرو له استعداده بې برخې دي، د هغوې فکر د ژبني موادو پربنسټ نه زېږول کيږي. آيا دا موضوع نه ښکاره کوي چې د کڼو ـ ګونګيانو افکار بربنډ دي او(د مار په اصطلاح) له «طبيعي معيارونو» سره تړاو نلري؟ نه، داسې نه ده. د کڼو ـ ګونګيانو افکار يوازې د هغو انځورونو، احساساتو او تصوراتو پر بنسټ راڅرګندېږي او شتون لري، چې په ورځني ژوند کې د بهرنۍ نړۍ د اشياو او د هغوې تر مينځ د اړيکو له لارې د دوې په افکارو کې رامينځته کيږي. ښايي د باصرې، لامسې، ذائقې او شامې حواسو منندوی ووسو. افکار له دې انځورونو، احساساتو او تصوراتو پرته، تش او له محتوای محرومه او د همدې لپاره شتون نلري.

**۲۲ جولای ۱۹۵۰**(پراودا،۲ اګست۱۹۵۰)

## ملګري ا. خولوپف ته

لیک دې راورسېده.

د زیاتې بوختیا له امله په ځواب لیکنې کې وځنډېدم. لیک دې په ضمني ډول له دوو فرضونو سره ادامه مومي: لومړی فرض دا دی چې کولای شوو د دې یا هغه لیکوال له آثارو خبره نقل کړو، بی له دې چې په پام کې ونیسو چې دا خبره له کوم تاریخي پېر سره اړیکه لري. دویم فرض دا دی چې د مارکسیزم دا یا هغه فورمول او استنباط، چې د یو تاریخي پېر د تکامل د مطالعې پایله ده، د ټولو تاریخي پېرونو لپاره سم او د همدې لپاره باید ثابت وساتل شي.

باید وویل شي چې دا دواړه فرضونه په بشپړه توګه ناسم دي.

دا هم څو مثالونه:

۱. د تېرې پېړۍ په څلوېښتمو کلونو کې، کله چې لاانحصاري پانګوالي موجوده نه وه، کله چې پانګوالۍ د یو څه نرمښت سره صعودي پرمختګ درلود او هغو نویو ټاټوبو ته یې پراختیا مونده، چې لا اشغال شوي نه وو او د پانګوالۍ د ناموزون تکامل قانون لا په بشپړه توګه پلي شوی نه و؛ مارکس او انګلس دې پایلې ته ورسېدل چې سوسیالیستي انقلاب په یو ټاکلي هېواد کې بریا ته رسېدلې نشي او یوازې په ټولو یا په ډېري متمدنو هېوادونو کې د عمومي ضربې په پایله کې دا انقلاب بریالی کیدای شي. دا پایله، وروسته ټولو مارکسیستانو ته په یو لارښود آر بدل شو.

خو د شلمې پېړۍ په لومړیو، په ځانګړي توګه د اولې نړیوالې جګړې په بهیر کې، کله چې ټولو ته روښانه شوه چې غیر انحصاري پانګوالي په څرګند ډول انحصاري

پانگوالی ته تکامل موندلې، کله چې هسکېدلې پانگوالي په مړېژنې پانگوالي بدله شوه، کله چې جگړې د نړیوالی امپریالیستي جبهې نه رغېدونکي کمزورتیاوې ښکاره کړې او د تکامل نامتوازن قانون دا وښوده چې پرولتاریایي انقلاب په بېلابېلو هېوادونو کې په بېلابېلو وختونو کې تر سره کېدای شي؛ لنین د مارکسیستي تیوري پر بنسټ دې پایلې ته ورسید، چې د تکامل په نویو شرایطو کې سوسیالیستي انقلاب په یو جلا هېواد کې هم بشپړې بریا ته رسېږي. لنین دا وښوده، چې په ځینو او یا ټولو متمدنو هېوادونو کې د سوسیالیستي انقلاب هم‌مهاله بریا په دغه هېوادونو کې د انقلاب د نامتوازنې ودې له امله ناشونې او د مارکس او انگلس زوړ فورمول له اوسني تاریخي شرایطو سره نور د مطابقت وړ نه دی.

څرنگه چې ښکاري دلته موږ د سوسیالیزم د بریا د مسئلې په اړه دوه بېلابېلې پایلې لرو، چې نه یوازې د یو بل متناقضې دي، بلکې ان یو بل نفی کوي. هغه دگماتیستان او تلمودیان[19] چې د یوې موضوع په منځپانگې کې له تعمق او تاریخي شرایطو پرته په میکانیکي ډول خبره رانقلوي، امکان لري ووایي، چې له

---

[19] تلمود:د یهودانو هغه کتاب دی چې په کې د یهودو د هغو سنتونو او د موسی د شرایع تفسیر شامل دی، چې یهودو علما او روحانیونو د اجتهاد په توگه پر تورات لیکلي دي. د دې سربېره په دې کتاب کې تاریخي پېښې او اسطورې هم شاملې دي.

تلمود په دوه ډوله دی:یو د اورشلیم تلمود دی، چې د څلورمی زېږدیزی پېړۍ شاوخوا تالیف شوی او بل د بابل تلمود دی، چې په شپږمه پېړۍ کې تالیف شوی دی. یهودان، دا کتاب له تورات وروسته، یو مقدس کتاب گڼي.

دلته له تلمودیانو څخه موخه، هغه کسان دي چې د تیوریگانو سره د منطقي چلند پر ځای دگماتیستي او کتابي چلند کوي. پښتو. ژ.

دې دوو پایلو یوه یې مطلقاً غلطه او باید لېرې واچول شي او بله یې مطلقاً سمه او باید د تکامل پر ټولو پېرونو یو ډول تطبیق شي. مارکسیستان دا کار نه کوي، خو په دې پوهېږي چې دګماتیستان او تلمودیان تېروتنه کوي. مارکسیستان دا کار نه کوي، خو په دې پوهېږي چې دا دواړه پایلې سمې دي، خو نه په مطلق ډول؛ هره پایله د خپل مهال سره سمه ده:د مارکس او انګلس پایله د غیرانحصاري پانګوالۍ د دورې لپاره او د لنین پایله د انحصاري پانګوالۍ د دورې لپاره سمه ده.

۲. انګلس په «انتي دورینګ» کتاب کې ویلي دي، چې له سوسیالیستي انقلاب وروسته، دولت د زوال لپاره چمتوالی نیسي. زموږ په هېواد کې د سوسیالیستي انقلاب له بریا وروسته په ګوند کې دګماتیستان او تلمودیان د دې غوښتونکي شول چې ګوند باید د دولت د ژر زوال، د دولتي سازمانونو د انحلال او له دایمي پوځ څخه د تېرېدنې لپاره قدمونه پورته کړي.

خو د نړیوال شته وضعیت د مطالعې له مخې، د شوروي مارکسیستان دې پایلې ته ورسېدل چې د پانګوالۍ له کلابندۍ سره، کله چې یوازې په یو هېواد کې سوسیالیستي انقلاب بري ته رسېدلی او په نورو ټولو هېوادونو کې پانګوالي واکمنه ده، د دې لپاره چې دغه هېواد د پانګوالۍ د کلابندۍ په وسیله ونه ځپل شي، د بریمن انقلاب ټاټوبی نه باید کمزوری شي، بلکې باید په هره برخه کې خپل دولت، د دولت ارګانونه، استخباراتي ارګانونه او پوځي ارګانونه پیاوړي کړي.

روسي مارکسیستان دې پایلې ته ورسیدل، چې د انګلس دا فورمول هغه وخت سم دی چې سوسیالیزم په ټولو او یا ډېري هېوادونو کې بریا ته ورسیږي؛ دا فورمول په داسې شرایطو کې د تطبیق وړ نه دی، چې سوسیالیزم یوازې په یو هېواد کې بري ته رسېدلی وي او په نورو ټولو هېوادونو کې پانګوالي واکمنه وي.

نو ښکاره ده چې دلته د سوسیالیستي دولت د برخلیک په اړه دوه فورمولونه لروو، چې هر یو بل نفي کوي.

دګماتیستان او تلمودیان ممکن ووایي چې دا ډول وضعیت د زغم نه وړ شرایط رامینځته کوي، ښایي یو له دې فورمولونو د مطلق غلط فورمول په توګه لېرې واچول شي او بل فورمول د مطلق سم فورمول په توګه، د سوسیالستي دولت د تکامل په ټولو مهالونو تطبیق شي. مارکسیستان دا کار نشي کولای، خو په دې پوهېږي چې دګماتیستان او تلمودیان ناسم دي. دا دواړه فورمولونه، سم دي؛ خو نه په مطلق ډول، هر یو یې د خپل وخت لپاره سم دی:د شوروي مارکسیستانو فورمول په یو او یا څو هېوادونو کې د سوسیالیزم د بریا پر مهال سم دی، خو د انګلس فورمول د هغه وخت لپاره سم دی، چې په بېلابېلو هېوادونو کې د سوسیالیزم مداومه بریا په ډېري هیوادونو کې د سوسیالیزم د بریا لامل او د دغه فورمول د تطبیق لپاره اړین شرایط رامینځته شوي وي.

د دې مثالونو شمېر زیاتولی شوو.

د ژبې د مسئلې په تړاو هم دغه شان دوه بېلابېل فورمولونه سم دي. هغه فورمولونه چې د ستالین له بېلابېلو آثارو اخیستل شوي او د ملګري خولوپف په لیک کې رانقل شوي، د ستالین «د ژبپوهنې په اړه د مارکسیزم لید دود» اثر ته مراجعه کوي. د دې مراجعې پایله دا ده، چې د دوو ژبو د امتزاج له امله معمولاً یوه ژبه بریالی او بله نابودیږي او د دوو ژبو امتزاج، نوې ژبه ـ دریمګړې ژبه ـ نه زېږوي، بلکې له دې ژبو یوه ژبه خوندي پاتی کیږي. هغه بیا د شوروي اتحاد د کمونیست (بلشویک) ګوند شپاړسمې کنګرې ته د ستالین وړاندې شوي ګزارش ته مراجعه کوي، چې په کې ویل شوي چې په نړیواله کچه د سوسیالیزم د بریا په دوران کې، کله چې سوسیالیزم پیاوړی کیږي او د ورځنې ژوند برخه ګرځي، ملي

ژبې په ناچاره په یوې عامې ژبې کې گډېږي، چې ښکاره ده دا ژبه نه ولیکاروسي[۲۰] ژبه ده او نه هم آلماني ژبه، بلکې یوه نوې ژبه ده. د دې دوو فورمولونو په پرتلیز جاج لیدل کیږي چې دا دوه فورمولونه نه یوازې دا چې له یو بل سره اړخ نه لگوي، بلکې یو بل نفي کوي.د دې وضعیت په لیدو، ملگری خولوپف نهیلی کیږي او په خپل لیک کې کاږي: «ستا له مقالې په دې پوه شوم چې د ژبو له امتزاج څخه هیڅکله نوې ژبې نه رامینځته کیږي، خو د مقالې مخکې، د شوروي اتحاد د کمونیست (بلشویک) گوند په شپاړسمه کنگره کې ستا د وینا له مخې مې کلک باور درلود، چې په کمونیزم کې ټولې ژبې په یوه عمومي ژبه کې گډېږي.»

ښکاره ده چې په دې دوو فورمولونو کې د تناقض له کشفولو وروسته او په دې کلک باور درلودل چې دا تناقض باید له مینځه لاړ شي، ملگری خولوپف د دې اړتیا ویني چې له دې فورمولونو څخه یو یې باید د غلط فورمول په توگه لېرې واچول شي او بل یې د ټولو پېرونو او هېوادونو لپاره د سم فورمول په توگه کلک ونیول شي، خو دا چې کوم فورمول باید کلک ونیول شي، هغه وربانديې نه پوهېږي. د دې وضعیت پایله نهیلیتوب دی. ملگری خولوپف ان شک نه کوي چې کیدای شي دواړه فورمولونه سم وي، خو هر یو د خپل وخت لپاره.

دگماتیستان او تلمودیان، چې د موضوع ماهیت نه سپړي، په میکانیکي ډول او له هغو تاریخي شرایطو پرته خبرې رانقلوي چې موضوع ورسره تړاو لري. د همدې لپاره دوی له نهیلیتوب سره مخ کیږي. که چیرې یو څوک د موضوعاتو منځپانگه

[۲۰] ولیکاروسان(لوی روسان)چې منظور په خپله روسان دي.روسانو له انقلاب مخکې ځان ته ولیکاروس او اوکرائینیانو ته یې«مالوروس»(کوچني روسان) او بلاروسانو یې«بلوروس» (سپین روسان) ویل.

تر ارزونې لاندې ونیسي، نو هیڅکله به نهیلی نشي. حقیقت دا دی چې د ستالین «د ژبپوهنې په اړه د مارکسیزم لیددود» رساله او د گوند په شپاړسمې کنگرې کې د ستالین وینا، دوه بشپړ جلا پېرونه په پام کې لري او د همدې لپاره دوه مختلف فورمولونه وړاندې کیږي.

هغه فورمول چې ستالین په خپله رساله کې وړاندی کړی او هلته د ژبو له امتزاج غږیږي، موخه یې په نړیواله کچه د سوسیالیزم له بریا مخکې پېر دی، کله چې په نړۍ کې زبیښاکگرې طبقې حاکمه ځواکمنتیا لري؛ کله چې ښکېلاک او ملي ستم په خپل قوت پاتی دی؛ کله چې د دولتونو تر مینځ د اختلافاتو له امله د ملتونو تر مینځ ملي جلاتوب او دوه اړخیزه بی اعتمادي په خپل ځای ټینگه پاتی ده؛ کله چې د ملي حقوقو تساوی شتون نلري ـ څرنگه چې اوس یې نلري؛ کله چې د ژبو امتزاج، د یوې ژبې د واکمنتیا لپاره د مبارزې له لارې تر سره کیږي؛ کله چې د ملتونو او ژبو تر مینځ د سوله ایزې او دوستانه مرستې لپاره اړین شرایط نه وي ـ څنگه چې اوس نشته؛ او کله چې د ژبو متقابله مرسته او بډاینه، چې ورته اړتیا ده، نه وي، بلکې ځینې ژبې مدغمې او ځینې ژبې بریالې کړای شي؛ نو ښکاره ده چې په داسې شرایطو کې یوازې غالبې او مغلوبې ژبې لرلی شوو. دقیقاً همدا شرایط دي چې د ستالین فورمول یې په پام کې نیسي کله چې وایي، چې د ژبو د امتزاج ـ د بېلگې په توگه د دوو ژبو د امتزاج ـ پایله نه یوه نوې ژبه، بلکې د یوې ژبې بریا او د بلې ژبې ماته ده.

د ستالین دویم فورمول، چې په یوې عامې ژبې کې د نورو ژبو ادغام ته په کې اشاره شوی او د گوند شپاړسمې کنگرې ته د هغه له وینا اخیستل شوی، بل پېر په پام کې لري: په نړیواله کچه د سوسیالیزم تر بریا وروسته پېر؛ کله چې نور نړیوال امپریالیزم شتون نه لري؛ کله چې زبېښاکگرې طبقې نابودې شوي او د ملي ستم

او ښکېلاک جرړې ایستل شوي؛ کله چې ملي جلاتوب او متقابلې بی اعتمادۍ خپل ځای متقابل اعتماد او د ملتونو تر مینځ حسنه اړیکو ته پرېښودلی؛ کله چې د ملتونو برابري پلې شوې؛ کله چې د ژبو د ځپلو او ادغامولو سیاست نور منسوخ شوی؛ کله چې د ملتونو تر مینځ مرسته رامینځته شوې او ملي ژبو ته دا شونتیا برابره شوی چې د ګډې مرستې له لارې په آزاده توګه یوه او بله بډایه کړي؛ نو ښکاره ده چې په دې شرایطو کې نور د ځینو ژبو ځپل او نابودول او د ځینو ژبو بریا د پوښتنې وړ هم نه ده. په دغسې پېر کې نور دوه ژبې نه لرو، چې د ژبو په مبارزه کې یوه یې ماته وخوري او بله یې بریالۍ راوځي، بلکې سلګونه ملي ژبې لرو چې له مینځه به یې د ملتونو د اوږدې اقتصادي، سیاسي او کلتوري مرستو په پایله کې، لومړی تر ټولو بډایه او متحده سیمه ایزې ژبې راڅرګندېږي او ورپسې به دا سیمه ایزې ژبې په یوې واحدې نړیوالې ژبې کې ګډېږي؛ ښکاره ده، چې دا ژبه به نه الماني وي، نه روسي، نه انګلیسي، بلکې یوه نوې ژبه به وي، چې د ملي او سیمه ایزو ژبو ښه عناصر به یې جذب کړي وي.

دا دوه جلا فورمولونه چې د ټولنې د دوو بېلابېلو تکاملي پېرونو سره تړاو لري او دقیقاً د دې لپاره، چې له دوو پېرونو سره تړاو لري، نو دواړه سم دي ـ خو هر یو د خپل پېر لپاره.

دا غوښتنه چې دا فورمولونه دې یو بل سره تناقض ونلري او یو بل دې نفی نکړي، هومره بابېزه ده، لکه چې وغوښتل شي د پانګوالۍ د واکمنۍ پېر دې د سوسیالیزم د واکمنۍ له پېر سره تناقض ونلري او سوسیالیزم او پانګوالي نباید یو بل نفی کړي.

دګماتیستان او تلمودیان، مارکسیزم او د مارکسیزم جلا پایلې او فورمولونه د متعصبانه عقایدو هغه ټولګه ګڼي، چې د ټولنې د تکامل له شرایطو سره

«هيځکله» بدلون نه مومي او د بدلون په وړاندې مقاومت کوي. دوې باور لري که چیرې دا پایلې او فورمولونه په ښه توګه زده کړي او په تصادفي ډول یې نقل کړي، نو دوې به د هرې ستونزې د حلولو توان ولري؛ خیال کوي چې په حافظه کې د دې پایلو او فورمولونو ثبتول به وکړای شي دا پایلې او فورمولونه به د ټولو مهالونو او هېوادونو او د ژوندانه ټولو برخو لپاره کارنده کړي. خو داسې باور به یوازې هغه کسان ولري چې د مارکسیزم لیکنې ګوري خو منځپانګه یې نهویني، دوی کولای شي مارکسیزم له یاده زده کړي، خو په مانا یې نه پوهېږي.

مارکسیزم د طبیعت او د ټولنې د تکامل د قوانینو علم، د ستمځپلو او استثمار شویو ولسونو د انقلاب علم، په ټولو هېوادونو کې د سوسیالیزم د بریا علم او د کمونیستي ټولنې د جوړولو علم دی. مارکسیزم د علم په توګه نشي کولای ثابت پاتی شي، تکامل کوي او بشپړېږي. مارکسیزم د خپل تکامل په ترڅ کې نشي کولای د تازه تجربو او نویو معلوماتو په وسیله بډای نشي او په دې توګه ځینې فورمولونه او پایلې یې د وخت په تېرېدو سره خپل ځای نویو فورمولونو او پایلو ته ونسپاري، هغه فورمولونو او پایلو ته چې له نویو تاریخي دندو سره اړخ لګوي. مارکسیزم داسې پایلې او فرمولونه نه مني چې د ټولو دورو او پېرونو لپاره ثابت وي. مارکسیزم د هر ډول دګماتیزم دښمن دی.

۱۸جولای ۱۹۵۰

پراودا، ۲ اګست۱۹۵۰



«ژبه یوه وسیله ده، هغه افــزار دی چې په
مرسته یې خلک له یو بل سره خبرې اتــرې
کوي، اندونه سره بدلوي رابدلوي او یو بل
پــېژني. له هــغه ځایه چې ژبــه له فــکر سره
مستقیم تړاو لري؛ نو فکر په کلیــمو کې ثبت
او ســمبالوي او بــیا د کلیــمو د ترکیبولو له
لارې هـغه په جـملو بـدلوي. نـو ویلی شوو
چې ژبه د فکر او د انسان د فکري فعالیتونو
د برياوو د بهير پایـله ده چې په انساني ټولنه
کې د اندونو مبادله شوني کوي.»

